

# سندره لیکونکی

## صدیق الله رښتین

عبدالمتین "اندړ"

مسلسله گڼه (۱٤)

# دکابل راديو دنشراتو رياست

## دپښتو ن ژغ مديريت


دژوند سندره — ليکو نکی: صديق‌الله رشتين

مهتمم: عبدالمتين ( اندړ )

دچاپ شمير ( ۱۰۰۰ )

دچاپ نيټه — د ۱۳۳۸ کـال د کب ( ۳۰ )






د کتاب لیکوونکی
ښاغلی صدیق‌الله رښتین

## سریزه

دخدای مینه دټولو مینو سردی، دغه مینه دپره او چته او له هرشه پورته ده دخدای دپاره مینه هم دهرچا سره چه وی او هرځنګه چه وی ؛ پاکه او سپیڅلې ده. دهېواد او وطن مینه ، دژبې، اولس او کام مینه ، دمور پلار، زوی او ورور مینه، ددوست آشنا، ښځی او ماینی مینه داټولې مینی خدائی دې او په دې معنی اصلی او فطری دی دخوشحال خان خبره :

خدایه ته په زړه کښې اچوې دامینی چه په ښکاردی مبتلا کړم ته می وینی په ما کښې هم خدای د پښتو مینه اچولی ده، دعربې ژبې او عربې پوهنو دزده کړې په زمانه کښې هم زما د پښتو لیك لوست سره مینه وه .

داشلم کال دې چه زه په رسمی چارو بوخت یم په دې شل کاله کښې زماهره نده د پښتو د پاره وه شومره چه ما څه لیکلی او شومره چه زما ژبه او کلم خو ځیدلی دی نو بې له پښتو نه په بل څه ندی خوځیدلی. ښائې چه ځینې کسان به ما په دغسې زیاته مینه وغندی . مګر دا له واك او وسه وتلی خبره ده. زه وایم چه زما ( لالو ) دې تر هر چاز یاته ښایسته وی. دا مینه ده. په مینه کښې غندنه بې ځایه ده. مینه خدائې شی دی، فطری شی دی دژبې مینه، د کام مینه په وینو کښې ګډه ده. دامینه دمور دپی سره یو ځای په وینه اور ګونو کښې ننوزی. دغسې مینه دژوند ساده ،ترخو چه سړی ژوندی وی دغه مینه به پکښې غریبزی .

زه همدغې مینی دې ته اړ کړی یم چه د پښتو ناوی په هر رنګ کالو او ګانه ښایسته کړم ما په دې شل کاله کښې په پښتو او د پښتو دپاره ، له دیرشو زیات کتابونه او له زروزیاتی مقالې، کوښلی دي.

لومړی کوښښ می دژبی دایرې او سټې دپخولو دپاره ؤ. نوړومبی می دلیک اولوست دښودنی دپاره درې گرامرونه ولیکل. بیا می دادب په تاریخ لاس پوری کړ. وروستی می دژبی په راویستون اوجوړښت پیل وکړ، وروسته دژبپوهنی اودپښتو اوستا اوسانسکرت پرتنی بهیرروان شو. پس له هغه «دپښتنو دمجاهدو» اوزیار ښودوواورراغی بیاد پښتونستان هله ګو له توده شوه اود «نوی ژوند» نغاری وړنګېدی. په دی منځ کښې دټول پو هنی (دایر ة المعارف) تادوهم کېښودی شو اودپښتو په لغت، گرامر، ادب، شاعری زیاتی ځیړنی وشوې. له ډېری مودې نه دې خبری ته ګواښېدم چه په پښتو کښې دسندرو او موسیقی په باب هم څه لیکل په کاردی. مګردا کار یوازې زما دپاره څه چه اصلاً هم ګران کارؤ له زرو کالو څخه زیاته موده کیږی چه ساز او سرودته په بده ستر ګه کتل شوی دی. له دې کبله نه پکښې

چا څه لیکلی دی او نه پکښې چاڅه و یلی دی نورو اولسو نو له خپل موسیقی سره دپښتنو هو مر ه بی پروایې نه ده کړی په خپله عر بود موسیقی په تاریخ کښې ډ یر څه لیکلې اوعملی برخه ئې هم پکښې اخستی ده په هند کښې دا ځنځیر هیڅکله نه دی شلیدلی همد غسی ټینګ ساتل شوی دی مګر د پښتنو په نظر کښې یوداسی بد شی ښوو دل شوی و چه غو ږونه به ئې تري پنا کول.

نو ځکه دپښتو دساز دآ لو په باب څه لیکل دشګو پړی غښتل وو خو بیا هم ما د خپلی مینی په زور دې ګران کار ته لیځی و نغښتلی او په ځلو رو میاشتو کښی دیو کتاب ګوتی په لیکلو بریالی شو م.

ز ه دموسیقی په فن کښې لاس نه لرم، دتا لونو او آهنګو نو په ویش اونو ټونونه پوهېږم نو ځکه دا کتاب نیمګړی ا و نیمګله بو لم ،

خوبه د ي خبره مىزړه ډاډه اوليا ړى مىتير ى شي چه هر يو كا ر په لومړي سر كښي د غسى نيمگړى وى . ولې سره د دى و يلاى شم چه دا كتاب په دي حال كښي هم دپښتو د موسيقى په باره كښي ډ ير ځه لرى چهبل ځاى نشته . دخوند خبرىاو كيسي پكښي ډيرى دى.بياهم

په خپله بى وسىړ ډاډهيم اووايم
تل تحفه وى موافق له خپل طاقته
در ښتين طاقت دى ستاسو مخكښي پيش
دامتل مى او ريدلى پخوانى دى
بر گ سبز است تحفهٔ درويش

صديق الله رښتين
دادبياتو دفا كولتى استاد



## سند ری

په پښتو کښې هم دساز او سر ود دپاره اوهم دخوږو بدلو اوشعرونو د پاره د سندرو کلمه راوړل کیږی نوځکه غواړوچه دا کلمه له بیخه را و سپړو اوپه معنی اوجوړښتئی ښیرنه وکړو او بیاتا سی ته دپښتو دوه زړی سندر ی وښیو .

زمونږ د ښیړنی ا و پلټنی له مخی د سندرې د کلمی ریښه او نیله (سندیسن) دی. سند یاسینا په او ستا کښی د یو مارغه نوم دی د باختر د آریه ؤله عقیدې سره سم دې مارغه د( سوما ) بو ټی دپامیرله غره ځخه او چت کړ او دافغانستان په ټولو غر و نولکه هندو کش ، سپین غراو نورو کښې ئې و شینده (۱) دغه شان په سانسکرت کښی هم د (سینه) په نامه د یو مارغه یادونه راغلی ده ، په او ستا کښی دهندو کش غر داپار سین په نا مه ذ کر شو ی دی ددې نا مه لفظی معنی داده د عقاب یا شا هین ترالو تلو اوچت اولوړ غر .

دانوم په هندی کښی د (سین ) په پښتو کښی د ( شند ، شندی) اوپه فارسی کی د شا هین په صورت تر اوسه موجوددی په هندی کښی دسین کلمه دفوځ اوژو ند اوقوت په معنی هم ترجمه شویده چه دغه ټولې معنا گانی ددغه مارغه سره لازمی دی ، ځکه چه شند یوقوی ښکاری مارغه دی .

دتان سین لقب چه په هند وستان کښې دا کبر پاچاد در بار یو ډیر زورور سندرغاړی تیر شوی دی . له دغی ریښی څخه اخستل شوی دی ځکه چه دی د تـال اوسـر شـاهـین ؤله دې نه معلومه شوه چه سین ، سینا ، ښاهین او (شینده، شند ؛ شیندی) داټول دیو ه مارغه نومونه دی چه د افغانستان

---

(۱) ـ دافغانستان تاریخ اول جلد ۱۵۲ مخ

په‌غرونو کښې مې دسومابوتې شیندلې‌دی-هر کله‌چه دموسیقی‌او سندرو په‌پیدایښت کښې‌دمارغانو افسانې‌یوقوی‌رنګ‌موندلی‌دی‌لکه‌چه څوک ئې دموسیقار‌او‌څوک‌ئې دققنس‌نومی مارغانو سره تړی‌نو‌په دې اساس کیدی‌شی چه دسندرو کلمه‌د(شیند ،سیند) له‌نامه‌سره‌تړلی‌وبولو ،

د سندری په کلمه کښی(ره) یو سفکس یعنی پسینه توری دی لکه‌د پړغرې اوتکری کلمی چه‌د ټک‌او ډغ‌له‌صوت‌څخه‌د (ره)په لګولوجوړ شوی‌دی .

د قاموسونوله کتنی‌څخه‌څر ګندیږی‌چه‌د(سیمرغ)نوم‌هم‌په‌ا صل کښی (سین‌مورد) دی . دایوداسی‌مارغه‌ؤچه‌سراومخو که ئی‌دشاهین‌اوځانګونه اووزرونه ئی دتاووس په شان ووا‌ویوډیرښایسته اوښکلی‌مارغه ؤمونږ دسندری‌په کلمه کښې‌ځینی نوری ریښی هم موندلا ی شولکه سان ، سام‌اوسانګ‌سان د صاف اوروښانه په معنی راغلی دی . سام‌په‌ویدی‌ژبه کی دلحن ا و سرود معنی ور کوی لکه په سا م وید کی چه د موسیقی د علم معنی ور کوی. سا نګ په انګر یزی کښی د ساز غږ ولو معنی ښندی. په پښتو کښې (د ساندی) کلمه هم ددې ریښی‌سره اړه‌لرې‌او‌په‌دې ټولو کلمو کښې دصاف،روښانه اوزداو ا هنګ دار غږ معنی ګانی پرتی دی. ساند ې په پښتو کښې داوز دې غاړی راښکل دی چه‌اوس یوائی دغم اوویر په وخت کی ویل کیږې سرییره په‌دې ښیړ نه دسندری‌په کلمه کښې د( سین‌او سیند ) ریښه هم لید لی کیږی ځکه چه د موسیقی اوسندروڅپی هم د اوبو او سیند ونود څپوپشان مد او جزر یعنی هسك او ټیټ لری اوپه روانیړ اورڼائی کښی مې پوره شباهت‌موجود دی له دې نه معلومه‌شوه چه دسندرو کلمه ډیره‌لرغونی

او پخوانيو ده اوريبنه ئي هماغه( سين ،سيند) نومى مارغه ته رسيبزى .

له تازه او نوي شيرنى شخه معلو ميزى چه(سند پسن ، سم ) داتفاق اواتحاد په معنى دى ، خوشحال ختك په دستار نامه كښى وائى «د گيينه مچى هسى سندلرى چه مير،سردار، دروان،و كيل وزيرلرى (۱)» په سنتره اوسنتور كښى هم داتحاد اواتفاق معنى ور كوى . يعنى متحدى ترازى او متفق تارونه . « سم » په سمفونى كښى د غبز ونو دتر كيب اواتحادمعنى لرى . په(سمندر ) كښى هم(سم، سام)دمجموعى په معنى دى په دغه كلمه په سانسكرت كښى (سامودرا )ده يعنى داوبومجموعه . نوددى معنى گانو په لحاظ ( سندره )هغه موزون كلا م يانغمه ده چه دالفاظو يا آ هنگونو له تر كيب ، اتفاق او يووالى شخه لا س ته راغلى وى ، دسندرى دكلمى دلغوى شيرنى له مخه معلوميزى چه دپكهت تبرديرپخوا دآهنگونوله تركيب، شخه كار اخست اوداروپا دسمفونى اركستراډول اوطرز ورته معلوم ؤ. ولى كوم مفهوم چه د غه كلمه ننكاره كوى د(سندرى) په معنى كښى هم پروت دى .

مونږ په دي باور لرو چه دپښت ساووتو كم له ډيرو لرغو نو زمانو شخه دآمو او اباسيندتر منځ دسپين غره، كسى غره ،هندو كش او پامير په لمنو اوناوونو كښى د خپل ښا يسته هيواد د غرونو ، سيند ونو ا و منظرو په ستاينه ډيري خوږي سندرى و يلى دى خو هغه ټولى دليك او تحرير په لمن كښى نه دي اچولى شوى بلكه په شفاهى ډول دخلكو په خولو كښى اوښتى راوښتى دى .مونږ دپښتوژبى په لنډيو كښى دلرغونوسندرو كيف اور نگ په ښه شان ليدلاى شو. اودغه زمونږډيري زړى سندرى دى

(۱) دستارنامه دپيشورچاپ ص ۱۹۰

چه د پښتو دشفاهي ادب يوه لويه پنګه‌ده . دپښتو په تحريري‌ادب کي کومه لومړی سندره چه زمونږ لاس‌ته راغلي ده هغه د بيټ نيکه مشهور مناجات‌دی، سليمان ماکو په تذ کرةالاوليا کي ليکي :

« چه شيخ بيټني به ډېر تر ډيره داسندري لولولي او د کسي غره کښي به دشپې ګرځيد »

لويه خدايه لويه خدايه — ستاپه‌مينه په هر ځايه
غر و لاړ دی درناوی کي — ته‌و له ژوی‌په زاري کي
دلته دی‌دغر و لمني — زمونږ کيږدی‌دی پکښي‌پلني
داو ګړی ډير کړی خدايه — لويه خدايه لويه خدايه
دلته لږزمونږاوربل دی — وړ کور ګی‌دی‌وړ بورجل‌دی
مينه‌ستا کښي‌مونږميشته‌يو — بل د چا په مله تله نه يو
هسک‌اومځکه‌نغښته ستا ده — د مير و وده له تا ده
دا پالنه ستا ده خدايه
لويه خدايه لويه خدايه

داسندره‌دخيال‌اوفکرله‌مخه‌زړو آ ريائي‌سندروته‌ورته‌ده، په‌دې‌سندره کښي‌دلوی خدای‌نما ئځنه د کور نيږاو کهول‌مينه، دخپل‌اولاد دډېرښت دعا او داسي نوري ښيګړی شته دی. سربيره‌پردې‌په‌دې‌سندره کي دبلي ژبي يوه کلمه‌هم‌نشته له‌دې‌نه ددې‌سندرښي‌ډېرقدامت اولرغونتوب ثابتيږی که‌مونږدبيټ‌نيکه زمانه د هجرت‌لومړی پيړی‌و بولونو بيادا سندره د هجرت لومړی پيړی ته‌رسيږی.

کوم تاريخونه چه بيټ نيکه دسړبن اوغرغښت وروراود کيس‌زوی ګڼي نو هغوی کيس دحضرت محمد ( ص ) همزمانه بولي اووائي‌چه‌دی

د غو ر د غر و نو څخه‌د‌رسالت‌دربارته ولاړ اوهلته‌دحضرت خالد(رض) په واسطه محمد(ص) په حضور مشرف شو اود اسلا م دين ئې قبول کړ.

په هر صورت مونږ داشعر دتحريري سندله مخې دهجرت دلومړۍ پيړۍ يودپږ خوندوراو اغيزناک مناجات اودخداى په لوى‌دربار کښې دزارۍ او دعايوه سوزناکه سندره بولو.

بله سندره د قطب الدين بختيار کـاکى ( رح )ده بختيار کـاکى دشها ب‌الدين غورى په وخت کښې يولوى‌صوفى او ولى تير شوى دى. دتذکرة الاو ليا په روايت‌دده‌ستر نيکه موسى له بختيار انو څخه سندته تللى ؤاو هلته دسيند په(اوچ)نومى‌ځاى کښې اوسيده.د( اوچ) ښاريو وخت دسنيد يومشهور ښارؤ اوديو مر کز اوپايتخت حيثيت ئې درلود، داځاى اوچت او جګ‌دى‌نوځکه اوچ بلل شوى‌دى‌په د ې کـلمه کښې دپښتو ريښه‌ځان‌ښکـاره کوى،بر هان‌قاطع‌د(اوچ )د کـلمى‌په‌بيان کښې ددى کـلمى هند ى توب‌ته‌هم‌څه اشاره کړيده مګر که ده‌ته دپښتولغات معلوم وا ى‌نوهيڅ‌کله‌به‌ئې دغه حـکم نه ؤ کړى.په هر صور ت‌مطلب د قطب‌الدين کـا کى په‌سندره کې‌دى.داسندره‌دشپږ مى هجرى پيړۍ يوه سوزنا که‌سندره ده.سليمان‌ما کوهسى‌ليـکى:بختيارپه پښتوسندرى کړينه. او اوښى‌تويوينه،خداى‌ته ناري کړى،غلبلى کړى.پاړ کى‌لرينه‌چه‌يودادى:

ويرمې‌زړه‌سورى‌سورى کړ    را ته و ګوره ملو کى
په بيلتون کى دې و باسم    لـه‌خوږمنه زړ[ا]ګى کو کى
راته و ګوره ملو کى

د بېلتون او رونه بل دی　　هر ګړی مې زړګی سوځی
لېونی یمه ز مېنی　　سوځم زه لکه پیلوځی.
را ته و ګوره ماو کی!

غوږ و لی دې ور بل دی　　اور زما په زړګی بل دی
زه بختیار خاورې ایرې شوم　　په اور سوی مې ګوګل دی
را ته و ګوره ملو کی!

## دموسیقی پیژندنه

په توروا وکلو وکښې د موسیقی پیژندنه او ښودنه څه قدر گران او مشکل کار دی. خالی داثر او کیفیت له مخه سري د موسیقی په ژوروالی او حقیقت پوه پیدای شی. لکه څنگه چه د روح اصلی پیژندنه یائی ښود نه خلکو ته گرانه شوی ده. دغسی موسیقي هم وبولئ! د و یتمی په باب دفکر او ذوق دخاوندانو بیان دادی چه موسیقی دلطیفه فنونو په دنار کښې تر ټولو جگك اولوړ فن دی چه دزړه په دننه پردو کښې لار مومی او انسانی روح او زړه ته پاکی او صفائي ورکوی.

موسیقی یوه فطری نغمه او دقدرت دپټو رازونو یوه خوږه زمزمه ده. موسیقی دکائناتو او ټولو موجوداتو د ژوندانه یو خوند ور تال دی. دا تال او سور د مارغانو په نارو، داوو او سیندونو په زمزمو اود گلانو او پاڼو په خوځېدو او رپېدو کښې داسی ښوتی دی لکه ساچه د پلو، وینی اوغوښې په منځ کښې چلیبزی را چلیبزی.

څانله نغمه، کچه نغمه دشعر او نظم سره ملگری نغمه داټولی دموسیقی دوښې گوري او خوري وري څانگې دی.

عربی او فارسی قاموسونه د ساز او سرود علم ته موسیقی وائې اروپایان ئې (موزیك) او هندی پوهان ئې (سنگیت بولی) پښتانه ورته سندری او ټنگ ټکور وائې. خوشحال خټک په دستار نامه ⁽¹⁾ کښې موسیقی د انسان له شلو هنرونو څخه یو لوی او غټ هنر بللی دی. دی وائې نظم او نغمه سره لازم او ملزوم دی. د خولې لحن او اواز ته سرود وایه شي. موسیقی یو ژور علم دی شپږ بحره لری او په هر بحر کښې شپږ نغمې دی

(۱) دستارنامه دپښورچاپ:

دیونانی او عربی پوهانو په نظر کښې موسیقی د تالونو او آهنگونو د حالاتو پیژندنه ده. د موسیقی لحنونه د هر راز غږونو له ترکیب او غبرګولو شخه جوړیږی دغه لحنونه او نغمې یا د انسان د غږ یاد آلو د غږ په واسطه بیانیږی نو ځکه د موسیقی اصل غږ او اهنګ دی. ابو نصر فارابی موسیقی در یاضی پوهنو یو قسم بولی. دی وائی: چه موسیقی یو داسې صنعت دی چه د نغمو او د هغو د جوړښت، ترکیب او فاصلو بحث کوی. ځینې وائی موسیقی د نغمو او غږونو د جوړښت د پیژندلو علم دی ارسطو په نظر شعر، موسیقی، او نڅا یو بل ته ډیر نیږدی او له یوه خیله ګڼل کیږی. په موسیقی کښې د آوازاو نغمې په واسطه ذیو فکر او خیال نقل یا عکس اخستل کیږی او په شعر او نڅا کښې د الفاظو او حرکاتو په ذریعه دغه کار سرته رسیږی (۱) په شعر او نڅا کښې یوازې وزن او تول وی او په موسیقی کښې وزن او آهنګ دواړه وی.

په دې حساب موسیقی د فطرت او طبیعت یو خوند ور او ژوندی انعکاس دی، د احساساتو او جذباتو د هر ګندو لو خوږه ژبه ده، شعر، موسیقی او نڅا په حقیقت کښې هم سره ډیر نژدی او تړلی دی، د شعر خوند موسیقی په قالب کښې زیاتیږی او موسیقی د شعر په چوکاټ کښې درندوالی پیدا کوی، کله چه شعر او موسیقی د مینې ګډون وکړی نو نڅا تری وزیږی، مولانا ابو الکلام آزاد شعر او موسیقی د یوه حقیقت بیله بیله جلوه ګڼی امیر خسرو دهلوی نظم لکه ناوی او موسیقی لکه ګاڼه بولی:

نظم راچون عروس دان و نغمه زیورش

نیست عیبی ار عروس خوب بی زیور بود

---

(۱) د ارسطو د کتاب الشعر پښتو ترجمه د پښتو ټولنې اکیډمی چاپ ص ۱۸.

موسیقی د کلتور او ثقافت یو مهم توکی دی چه له اولسی ژوند څخه زیږی او په اولسی ژوند اثر کوی، موسیقی د پرو مطلبونو د پاره استعمالیږی او د ژوندانه په ټولو خواو کښې ورځنی کار اخستل کیږی. مثلاً: د کوچنیانو ویده کول، د روحی رنځونو علاج، د عسکرو جوش او مستی، د نڅا انتظام د کاریګر و خوشحالی، د بزګرو آرامی او هوسائی، د وزو او ګډو څرېدل، د اوښانو او زده مزلونه، د اسونو او مالونو او به کول، د مارانو او ود کول، د ښکار ویورو زنه. دا ټول د موسیقی په واسطه سره سرته رسیدای شی.

موسیقی په اول کښې هرځای مذهبی رنګ درلود او د عبادت او نمانځنی وسیله وه

د مصر او چین، هند، یونان او یهودو روحانیونو موسیقی د عبادت یوه ذریعه ګڼله.

د موسیقی په باب نوې نظریه داده چه په رګونو کښې حرارت او په وینه کښې جوش پیدا کوی. د (رومن رولان) (۱) په نظریه موسیقی د ژوندانه یو خوند ور تال او خوږ بیان دی. نو ځکه د موسیقی و ده او ترقی د یو قوم په وده پوری اړه لری.

د ابتدائی قوم موسیقی هم ابتدائی او درسیدلی او مدنی قوم موسیقی هم پخه، درنه ولوړه وی.

**د موسیقی تاریخ او پیدایښت:**

د موسیقی د پیدایښت اصلی ځای او نیټه تر اوسه چا په یقینی ډول نه ده معلومه کړی او دا خبره لاتر اوسه د شک له تورو تیارو څخه د بڼا ور سپینی رڼاته نه ده راوتلې، د هند پوهان د دې علم راویستونکی برهما بولی او مهار یوجی ته یې لویه برخه ورکوی، مصریان په دې عقیده دی چه موسیقی د دوی خدایانو ر او یستلې ده دیو نانیانو یقین دادی

(۱) پری آهنګه ص ۲۲.

چه موسیقي ددوی د آرت او صنعت د رب النوع « میوز » پیدا ښت دی، یهودان دتورات په حواله (جوبل) ددې فن را و یستو نکی بولی . په عربي روایاتو کښې یوبال د موسیقی را و یستونکی ګڼل شوی دی . دتورات جوبل اود عربو (یوبال) یو نوم ښکاری .

امام فخرالدین رازی وائي چه د موسیقی دفن پیدا کوونکې حکیم فیثا غورث دی . څو کسانې داؤدعلیه اسلام ته نسبت ور کوی . خوشحال خټک په خپل مشهور کتاب دستار نامه کښې داعلم دافلاطون اختراع ګڼی. دغه شان دموسیقیٰ دپیدا ښت دنیټی په باره کښې هم کومه پریکړې نظریه نشی موندل کیدای. له ژوري کتنې او پخې پلټنې څخه داسی معلو میږی چه دموسیقی وجود دحکیم فیثاغورث او افلاطون له زمانې څخه ډیر پخوانی دی حکیم فیثاغورث ترمیلا د پخوا د شپږ می پیړی په آخر کښې یعنی نژدی دوه نیم زره کاله پخوا ژوند کاوه او افلاطون خو ترده هم وروسته دی حال دادی چه دموسیقی بیان د آریه وُ په دوهم وید (سام وید) کښې نژدې زر کاله له دغه وخت څخه دمخه راغلی دی .

په را ماین او مهابارت کښې هم دموسیقی بیان شوی دی دغه شان څلور زره کاله پخوا په نړۍ کښې د موسیقی د آلاتو وجود ثابت او څرګند دی ، ترڅې چه په افغانستان کښې هم د ډومره موده پخوا دتولې او هارپ دوجود یادونه شویده. البته افلاطون دموسیقی دیوې آلې (ارغنون) جوړوونکی بلل شوی دی . اودا خبره تر ډیره حده دمنلو وړده .

په ډیرو کتابونو کښې دموسیقی دپیدا کېدلو په بیان کښې دموسیقار او ققنس نو می مارغانو قصه هم راغلی ده د قاموس مشهور کتابونه لکه غیاث اللغات ، فرهنګ نظام ، هفت قلزم او نورلیکلی چه یو ها نو

اوحکیمانو ده موسیقی علم د موسیقار نومی مارغه له غبز څخه راویستلی دی .
ځینی دغه مارغه یوانسانوی شیز بولی هفت قلزم یې برخه کښې زیاته
شوی نه کوی .چه موسیقی دققنس نومی مارغه له غبز څخه پیدا شوی ده .
ققنس یو ښایسته اوخوږ آوازه مارغه دی مبنو که ئې (۳۶۰) سوری لری اوله
هر سوری څخه یو غبز راباسی، ددې مارغه عمر زر کاله وی د عمر په
آخر کښې د وچو لرګیو یوه ځاله جوړه کړی دی، په کښې کښینی او ډیر
خوږو نغمو له سوزه اوروا خلی ځاله اودی دواړه وسوځی او په پای کښې
ایری شی هندی مأخذونه لیکی چه دغه مارغه ته په سنسکریت کښې
(دیپک لاټ) وائی .

په هندی ساز کښې د «دیپك» په نامه یو راګ هم له دغه نامه اخستل شوی
دی ، خولد وره لا داده چه په پښتو کښې هم د (لاټو) په نامه یوه مرغه
شته چه ځینی خلك ئې (ټیغکه) ولی او دهر ډول مرغ و آوازونه و کبازی
او کیدی شی چه ددغه الوتونی غبزونه هم د موسیقی په پیدا ینت کښې
څه اثر ولری.

دققنس او موسیقار نوم په شعر او ادب کښې هم زیات راغلی دی
اودغه افسانوی رنګ ورسره یوره ملګری دی.

داروپا پوهان لیکی چه د تاریخ نه پخوا او دورو کښې هم موسیقی
موجوده وه او ځینی آلی ئې موندل شوی دی ، لکه چه دفرانسی په یوه
غار کښې د ډبرې وری شپیلکی پیدا شوی دی چه د ودانیزی او د
ګوزن له هډوکی جوړ شوی دی دلندن په موزیم کښې هم د تاریخ نه پخوا
زمانی ځینی آثار لکه توږلونه اوزنګونه شته دی چه له آیرلینډ
څخه راوړلی دی .

**د موسیقي کلمه :**

موسیقي کلمه چې په قاموسونو کښې یو یوناني لفظ ګڼل شوی دی، ځینې یې سریاني بولي او چا عربي بللی دی. د اومړۍ خبرې د منلو کېږ و الي چه موسیقي لفظ د اسلام نه پخوا د جاهلیت په زمانه کښې نه و هغه وخت چه یوناني آثار په عربي کښې ترجمه کېدل نو دغه لفظ هم په لږ تغیر عربي ته را ننوت.

ځکه چه دغه کلمه د موزیك معرب بولي او اصل یې (موز) ګڼي چه په یونان کښې یو ځای و او خلك یې په ساز و آواز کښې مشهور وو. مګر له دې نسبت څخه د یونان د (میوزس) نومې رب النوع نسبت زیات د زړه وړ ښکاري په همدې اساس دغه کلمه په انګریزي کښې (موزیك) فرانسوي کښې موزیکي، او په لاتیني کښې (موزیکا) دی. الماني دایرة المعارف لیکي : موزیک د یوناني کلمې ( موزیکا ) نه اخستل شوی دی او د یونان د (موز) خلکو ته منسوب دی. دغه خلك د ساز و آواز په هنر کښې مشهور وو.

فرهنګ نظام موسیقي د یوناني موزیك معرب بولي.

د دې تورو معنی په آهنګ او آواز سره شوی ده که چیرې موسیقي یو مستقل لفظ و ګڼل شي نو بیا په کښې د ( موسه ) ریښه ځان څرګندوي. موسه په فارسي قاموسونو کښې د یوې مچۍ یا یو الوتونکي نوم دی په پښتو کښې دغسې یو الوتونکي ته «بم» هم وائي.

د ده په غږ کښې د ساز او سرود کیف او رنګ موجود دی د ( موسیچه ) په کلمه کښې هم د موسیقي د ریښې څه څرك لګېږي په پښتو کښې یې کورکورۍ، بولي یوه بختوره او بزرګه څونډۍ مرغۍ ده.

ځوږ اواشوزناکي غږزاري او شاعران ددې ناري دخدای ذکر او عبادت بولي. ځینې کسان د موسی پیغمبر له و چ کسانې څخه د دولسو چینو دراوتو معجزې ته دموسیقی د ولسو سرونو سرچینه وائي.

د مولوي بلخي له یوه بیت څخه ددې کلمو تر منځ څه اړیکی نوندې اړدیوالی هم څرګندیږي وائي:-

اګر موسی نه یم موسیچه هستم درون سینه موسیقار دارم

دلته موسیقار دساز دیوی آلې په معنی دی چه له اوبو او ورودرمو جوړشوی وی،

تردې ځایه پورې د موسیقی او موز یك دستې په باب کښې دنورو کتابونو او دلې رائې څرګندې کړې شوې. اوس که خپله رایه هم ورسره ملګرې کړو نو بده خبره خو به نه وي.

زماخیال دادی چه ددې کلمو اصلي مونږ اونیله درمس،مز،مها، توري دي او دادواړه کلمې په اصل کښې یوشې دی ځکه چه «س،ز،ه»تل په یو بل بانډې اوړي.

ددې کلمو په مفهوم کښې داحترام، عزت، ستاینې، اوینت، نمانځنې او عبادت معنې پرته ده دسانسکریت. مها، نمست د اوستا، مزدا د فرانسي موسیو دانګریزي مس، مستر، دفارسي مهتر، نماز دپښتو مسر، مشر، نمنځل مونځ دا ټول په مفهوم او معنی کښې سره نژدې او له یوې ریښې څخه دي او دعبادت، نمنځ، او احترام اساسي مفهوم په کښې نغښتل شوی دی،

په ټولو لرغونو اوزړو تهذیبونو کښې موسیقي دعبادت او نمانځنې یو اساسي اوضروري جزدی. په هندي تهذیب کښې موسیقي یو مبارک شي او دمذهب توکی ګڼل شوی دی، په یونان کښې به د(اپالو) نومې دیوتا په ستاینه او نمانځنه کښې سندري ویل کیدی (۱)

(۱) آجکل ۱۹۵۶ ع داګست ګڼه.

په يهودي تهذيب کښې هم موسيقي دعبادت يوه برخه وه غرض دا چه په ټولو تهذيبو نو کښې موسيقي دنفس دپاکئ، دروح دصفائي او گناهونو دبخښني غوره وسيله گڼل کېده. نو ځکه مونږ دې ځيرني له مخې ويلای شو چه بايد موزيك او موسيقي کلمې د (مزـمس) له آريائي ريښې شخه را وتلي وي.



## موسیقي د پوهانو په نظر کښې

یونانیانو موسیقي د مذهب ، سیاست او ژوندیو لازمي عنصر ګڼله او د اجتماعي ژوند ښه والي سبب ئې باله، په یونان کښې فیثاغورث، افلاطون، ارسطو اقلیدس ، بطلیموس او نورو موسیقي کلك پلټلي و او مهم آثار ئې پکښې لیکلي دي ، افلاطون وائي چه موسیقي د روح غذاده چه د انسان د هوش او زړه قوه زیاتوي او په طبیعت کښې سمون پیدا کوي ، دی وائي چه موسیقي یو علم دی او ښائي چه په تعلیم او ښوونځي زده کړی شي .

موسیقي د افلاطون په نظر کښې د روحي روزنې یوه ښه وسیله ده دی وائي چه موسیقي ټا ینا توته روح عقل ته وزر ، خیال ته الوت ، غمجن ته خوښي او موجوداتو ته ځلا او ښکلا ور کوي .

د اروپا ستر پوهان هم موسیقي ته په درناوي نظر ګوري .

د مثال په ډول په وروسته کرښو کښې د ځینو اروپائي پوهانو نظرئې راوړو هیګل جرمني وائي :

موسیقي دا حساس ډیر او چت او عالي هنر دی ،

شکسپیر وائي : څوك چه د موسیقي ذوق نه لري او خوږ آهنګونه په مستۍ نه راولي د ژوند کولو وړ نه دی .

داروین د عمر په آخر کښې ویل : کاشکې چه بیرته ځوان شم او موسیقي زده کړم

روسو په موسیقي مین ؤ او د خپلې معشوقې په یادونې ډیرې سندرې ویلې دي .

کارلایل وائي : چه موسیقي مونږ د یو خو نورو اوله کیفه ډك ژوند خواته بیائي .

مولیر وائي : مونږ د موسیقي نه داتمه لرو چه ټول انسانان د مینې او محبت په منځ وسره وتړي .

اوتروائی :ـ موسیقی یوه غمجن زړه ډیره غور ډاډ گیرنه ده . موسیقی یو شبه مربی او پالونکی دی چه د صبر ، حوصلی او تعقل ښود نه کوی . بتهوفن : موسیقی له فلسفی نه هم اوچت او عالی الهام بولی . دی وائی : موسیقی د فکرله چینی راخاخی او د زړه په پردو کښی ننوځی ،
موکووائی اوړاو عالی مزاجونه تل موسیقی خوښوی .
واگنر وائی : موسیقی د احساسات و خوځولو او زړه ډوندی کولو یوه زوره وره مټرو که ده .
شوپنهاور وائی : موسیقی یو عالی ، اوړاو ستر صفت دی .
د وزارت ، په نظر کښی د موسیقی د ژوندانه یو خوندور تفسیر او خوږ تعبیر دی
برلیوز دداسی موسیقی آرزو من دی چه هم و نه اورکو نه په لړزیده وراولی ، نتیجه دا دنیاهله دا وسید وړه بولی چه د موسیقی له قانون سره وچلیږی .
په شرق کښی هم د موسیقی داو ئی ، عظمت او ستاینی نغاری او نو یتو نه غږیږی ابو نصر فارابی چه په دوهم معلم مشهور دی وائی ، د موسیقی د فن دراویستلو غرض دادی چه انسانی روحونه له قدسی عالم سره بلد کړی شی او تربیوی انداز ی د نفس تزکیه او پاکوالی راولی .
ابن سینا د موسیقی پوخ ملګری ؤ او په دی برخه کښی ئی غوره اثار لیکلی دی ، حجة الاسلام ابو حامد محمد امام غزالی ( رح ) وائی :
څرنګه چه په اوسپنه او ډبره کښی اور پروت دی دغسی د انسان په زړه کښی هم ډیر رازونه پراته دی نو څرنګه چه د تیبزو له تکر شخه داور بڅری زیږی دغسی د موزون آواز و نو په اوریدو د انسان زړه بی اختیاره ورڅرنګ وهی ،
مولانا جلال الدین بلخی موسیقی د آسمان د دور لکونو او پیرونو یوه انګازه بولی :
بانګ ګردشهای چرخست اینکه خلق      میسرایند ش به تنبور و به حلق

بل ځای وائي:

آتش است این بانگ نی و نیست باد   هر که این آتش ندارد نیست باد

مولا ناجامي څه ښه وائي:

چیست میدانی صدای چنگ عود   انت ربی، انت کافی یاودود

نیست درا فسر دگان ذوق سماع   ورنه عالم را گرفته این سرود

آه از ان مطرب که از یك نغمه اش   آمده در رقص ذرات وجود

بیدل او حافظ خود مغني مطرب او سازو سرود پېره یادونه کړي ده

خلیل مطران وائي: موسیقي په زړونو کښې خوشالي او مستي پیدا کوي.

علامه هجویري، ذو النون مصري، شبلي او نور صوفیان موسیقي د روحي پاکي او صفائي سبب بولي

ابن خرداذ به وائي: موسیقي ذهن صفا کوي، زړه خوشالوي بې زړه سړي زړور کوي له شوم نه سخي جوړوي، موسیقي د غم او اند یښني حاله ورا نوي، د خفګان کور ړنګوي څو مره چه روغ له ناروغه ښه دي دغو مره موسیقي له منطق نه غوره ده نو خدای دې هغه حکیم ته خیر ورکړي چه موسیقي ئې را ویستلي ده.

ماندلس یولوی لیکوال ابن عبد ربه وائي: موسیقي د سامعي مراد د زړه در شود روح پسرلی، د شوق چمن دیوازې والي ملګری او د لارې تو ښه ده ښې نغمې سړی د خیر په لوري راکاږي(۱)

جرجي زیدان موسیقي یو ښایسته هنر او د هر ملت د احساساتو ترجمان بولي. په هند کښې شیخ معین الدین چشتي نظام الدین اولیا او نور صوفیان لکه قطب الدین بختیار کاکي

---

(۱) تاریخ الموسیقی العربي ص ۱۸٤.

دصوفیانه موسیقی په رواج کښې لویه برخه لري ددوی په طریقه کښې موسیقي دزړونو دپاکۍ اوصفائی یوه غوره وسیله ده په هند کښې لهلرغونو زمانو شخه موسیقي دتبرک او تقدس مقام درلوداودعبادت او نمانځنې وسیله ده ، امیر خسرو دهلوي دموسیقيپه علم اوعملدواړو کښېدډېرلوړ مقامخاوندؤاودافنئې کمال ته رسولیؤ .

مولانا ابو الکلام آزاد وائي : حقیقت دادی چه موسیقیاوشاعري دیوهحقیقت دوه بیلیبیلی جلوی دی ، دیوائيچه ښه آوازخوږ آواز زمــا دژوندانه سا ، دد ماغی پلټنو دوا او دزړه او بدن دټولو رنځونو علاج دی .

ډاکترهردیال هندي لیکلي دي : موسیقي دطبیعتیوداسیپیغامدی چه غم اودردسپکوی اودخلکوترمنځ مینه زیاتوی . موجودهنسلعالي موزیك ته ډېر احتیاج لــري . په پښتنو کښې خوشحال با با موسیقي دانسان له شاو هنــرو نو شخه یولوی اوغټ هنر بللی دی . دی وائي پهچاکښې چه دسازذوق نه وی دهغه فطـرت به رنځورغاړیوی . خوږ آواز او ســاز ددا ؤ د پیغمبر معجزه وه خوشحــال پهخپـل وخت کښې دغهساز ونهیاد کړی دی :

ښه آواز کهدبربطدموسیقاردی — یادچنګتدمغنییادمزمار دی

مهوایداستادجړاوونبو آوازوای — درباب کهدچارتاریادبلتاردی

دخوشحالپه نظـر کښې دبنګړوسازاودجړاوونبو آوازترهــرڅهزیات دی اوددی آوازپه مقا بل کښې نورټولسازونهاوآوازونهشاتهغورزوی اووائي دخپلمحبوبدجړاو ونبو آ وازغواړی اودائکــه چه داهم یــو خوږ سازدی ؛

# موسیقی او ملیت

کله څه هم دعلم، فن او اساس په لحاظ موسیقی دشعراوادب غوندې په کوم خاص قوم او ملت پوری اړه نه لری، بلکه دهر چاماَل دی اوهرڅوك پکښې شريك دی. مګردملتونواوقومونودځینوخاصوتاریخی اقتصادی، مذهبی او جغرافیائې خاصیتونو، توپیرونو پهوجهدموسیقی عامو سرو نواوتالونو ځانله ځانله ډولونهاو رنګونه موندلی دی اوهرهو قوم دې شایسته ناوې ته په بیل بیل اوډول ډول جامې اوګانې وراغوستی دی. دغربی موسیقی اوشرقی موسیقی له بیلتون څخه هیڅوك انكار نشی کولای. دموسیقیداټول تالونه، سرونه آهنګونه، راګونه اودموسیقی آلې نه ټولې په یوه وخت کښې پیدا شوی دی او نه په یوه ملك کښې. په موسیقی کښې داسی ډیر تالونه او سازونه شته چه دیوه قوم اوملك مال ګڼل کیږی. مثلاً په هندی راګونو کښې ډیر راګونه هندی مال ګڼل کیږی دساز په آلو کښې هم داسیډیری آلی شته چه ترا وسه پورې یوه قوم اوملك ته نسبت کیږی. لکه خراسانی تنبور اوبغدادی تنبور. دغه شان چترویشا، سارنګی اوداسینور دهند خاص سازونه دی. په دې ډول چینیان هم ځینی خاص سازونه لری چه په نوروځایونو کښې نشته لکه پی پا، یا، وغان اونور.

داخوان الصفا دموسیقی په رساله کښې لیکل شوی دی چه: هرقوم ځانله نغمې او سازلری چه دوی ترې خونداولذت اخلی اوبل څوك ترې هغه خوندنشی اخستلای مثلاً دترکو، عربو، کردیانو، ارمنیانو، پارسیانو اورومیانو نغمې اوسازونه سره بیل بیل دی ابن زیله دابن سینا شاګرد د (دستان خراسان، اصفهان) په نامه ځینی لحنونه راوړی دی

چه خاص دخراسان دسیمی لحنونه وواوعمربونه پېژندل(۱) دثقافته المهنه مشهوره او درنه مجله لیکي چه : په نړۍ کښې هرمات اوهرقوم ځانله خاص ساز اوسرودلري چه یو دبله ېکښې څرګند توپیر لیدل کیږي. جاپانیان یوډول لرغوني ملي موسیقي لري چه د(ګاګاکو)په نامه یادیږي او دستروا کمن په دربار کښې ویل کیږي. په جاپان کښې که څه هم غربي موسیقي ښه وده کړېده مګر خپل ملي موسیقي ئې هم په ښه شان ساتلې ده چینیا ن دخپلې ملي موسیقي اوخپلولر غونو آ اوسره ډېره مینه لري په هند کښې ملي کلا سیک موسیقي ته په د روند نظر کتل کیږي اواوس هلته دملي موسیقي د پالنی دپاره لوئې داکاډ مۍ جوړې شوی دی. د موسیقي یومشهور غربي پوهاند شوډان وائي : ملي ترانو ته ښه ځیر شه ارغږز ورته و نیسه د غه ترانې دهرملت دپېژندنې ښې نښانې ښکاره کوي .

په فرانسه کښې د(رامو-۱۷۶۳ع) کمپوزونو په دې وجه ډېرار زښت درلود ، چه دفرانسی دموسیقي رنګ پکښې ساتل شوی دی .

انتونی فریمن امریکنی موسیقي پوهاند وائي: چه په غربي ملکونو کښې دهرملك موسیقي یوملي روح لري او ماهر تالګر هغه دی چه ملي روح پکښې و ساتي » په شرق کښې عربي ، فارسي ، افغاني او هندي موسیقي که څه هم په ډیروشیانو کښې سره شریکه ده مګر هریو ځانله جلا رنګ او ښه لري اوداوجه ده چه په نړۍ کښې هرملت دځانه یو ی ترانې ښښتن دی چه هغه ئې دپیژند نې او بیلتو ن یوه ستره نښه ګڼل کیږي. کوم قوم اوملت چه ملي ترانه نه لري هغه په حقیقت کښې دخپلواکي وجود سند نلري.

(۱)- تاریخ الموسیقی العربی ص ۲٤٦

یو شرقی سړی چه له غربی موسیقی څخه پوره خوند نشی اخستلای ددې وجه داده چه دده په ملی روح سمون نه خوري. ټول پوهان په دې متفق دی چه موسیقی دیو قوم د کلچر او تهذیب یو مهم رنګ دی ملی موسیقی دهرملت روح او ساده. د آرټ او صنعت په نړۍ کښې هر قوم د خپل مخصوص ساز او موسیقی په واسطه پیژندل کیږي ګوم قوم چه ملی موسیقی نه لري هغه په مدني قومونو کښې ځان نشي حسابولای.

پښتون ملت هم له ډیرو لرغونو زمانو څخه خپله موسیقی او ساز خاصې آلې لري. یو پښتون ځلمی چه کله د «روه» په جګو غرونو د خپلې مستې شپیلۍ په بدرګه کښې یوه خوږه لنډۍ ووائی یا په ډیرو او هو جرو کښې د پښتنې سندرغاړو دبدلو، غزلو، بګټیو، لوبو، نمیکیو خوږو آهنګونو ته غوږ ونیسي نو تر ډیره وخته بیامست او خوشحاله ګرځي د پښتو ساز او تنګ تکور ددوی د غمجنو زړونو دارو او دخوږو زړونو ملهم دی. رباب. سرینده، غژکه ډولکی ، ماما، شپیلۍ، چمبه د پښتنی ساز لرغوني آلې دی چه په دې خاوره کښې تردوو زرو کالو زیات تاریخ لري لدې کبله ښائی چه ټول ملی آهنګونه په منظم صورت راټول کړی شي او په علمي قالب کښې واچولی شي ترڅو چه له فنا کیدو څخه وساتل شي. (انتونی فریمن) د پښتو موسیقی په باب وائی :« افغانی موسیقی روح خوشحالوی او زړه تازه کوی. او تر اوسه یکی ملی روح ژوندی دی. دی وائی که پښتانه سندرغاړی افغانی ملی موسیقی وساتی نو په آخر کښې به د پرې دې موسیقی تر اثر لاندې راشی»

مونږ هم دغه نظریه لرو او په ټینګه سره د افغانی موسیقی دساتنې او روزنې غوښتنه کوو !!

# موسیقي او مذهب

مولانا ابوالکلام آزاد په غبار خاطر کښې وائي: دموسیقي دحرمت په باب چه فقهاؤ څه ویلي دي ټول قضائي حیثیت لري نه تشریعي. دعربو دموسیقي تاریخ لیکي: پاکه خبره داده چه دموسیقي دحرمت په باب په قرآن کښې کوم واضح دلیل نه دي موندل شوي (۱)

مګر په احادیثو کښې دحرمت او اباحت دواړو حدیثونه راغلي دي، فقهاپه عمومي ډول دغنا دحرمت پرخوا دي مګر صوفیان دسماع (۲) دا باحت ملګري دي.

امام نووي (رح) لیکلي دي چه دسرود په حرمت کښې کوم صحیح حدیث نشته دي. امام غزالي، علامه هجویري، ذوالنون مصري، شبلي، او نورصوفیان موسیقي دروحي پاکۍ او صفائي سبب بولي.

دعربو اوږي عالمان په خپل وخت کښې دموسیقي ملګري وو لکه: ابن ماجة، اباالحکم الباهلي، اباالمجد (۳) ابن عبدربه او نور.

حسن بصري دعراق لوي فقیه وائي: «غنا دخدای دعبادت او نمانځنې په لاره کښې ښه مرسته کوي» ذوالنون مصري وائي: سماع یو خدائي تاثیر دي چه زړونه وپښوي او خدای ته ئې رسوي مګر هغه چه سرې ئې دزړه په غوږو واوري، شبلي وائي: «موسیقي په باطن کښې ښه وعظ دي» (٤)

په هند کښې قطب الدین بختیار کاکي، شیخ معین الدین چشتي او نظام الدین اولیا موسیقي دخپل مسلک یو جزء باله.

---

(۱) دعربي موسیقي تاریخ ص ۳٤

(۲) دسماع او غنا ترمنځ هم شائي چه کوم فرق موجود دوي.

(۳) تمع ص ۲۳۱

(٤) تمع ص ٤٩ـ٩٤

قاضي منهاج سراج دطبقات ناصري مؤلف دموسيقى داوريدوشوق دراود اوله سازشخهٔ ئي پوره خوند اخيست(۱)

وائي چه يو وخت شمس الدين التمش په هند کښي دموسيقي دبند يز امر وکړ نو په صوفيانو کښي يو شور ماشور جوړ شواو بيا دقاضي حميدالدين په غوښتنه بيرته صوفيانو ته اجازه ورکړه شوه.

داخوان الصفا په رسالو کښي ليکل شوي دي:-چه موسيقي په دينو شريعتونو کښي په دي وجه منع شوي ده چه خلکو ددنيائي خوند دپاره ورڅخه کاراخست اوحکيمانو داصلي مقصد لارئي پري ايښي وه.

شيخ شهاب الدين سهروردي-شيخ ابوطالب مکي او امام غزالي په خپلو کتابونو کښي دسماع په رواتوب دلائله بنا بونه ليکلي دي(۲)

تاريخ طبري ليکلي دي چه (شيرين-سيرين) دحسان بن ثابت مغنيه وه دا (سيرين دمصر حاکم(مقوقس) دخپلي خور(ماريه قبطي) سره حضرت محمد(ص) ته ليږلي وه چه پيغمبر بيا حسان بن ثابت ته وبښله او( ماريه) ئي ورته په نکاح ورکړه. (۳)

شيخ عبد الحق محدث دهلوي په خيارالاخبار کښي وائي :

قاضي حميدالدين ناګوري دسماع اووجد ملکري ؤ اودسازداوريدو ډير شوقمن ؤ، شيخ فخر الدين رازي دسماع په جواز کښي د(اباحته (السماع) په نامه يو رساله ليکلي ده.دغه رسا له چاپ شوي هم ده(٤)

---

(۱) ثقافة الهند(۱۹۵۳د مارچ ګڼه.
(۲) آجکل(۱۹۵٦ داګست ګڼه ص ۳۱
(۱) دمع ص ۵۰
(٤) دآجکل ۱۹۵٦ اګست ص ۳۱-

شاه عبداللطیف د سند یو مشهور صوفی شاعر ده و سیقی ډېر شوقمن ؤ او تل به ده و سیقی په محفل بنی خپل کتؤ(۱)

خوشحال خټک په دستار نامه کښی وائی: چه د سماع په باره کښی د عالمانو او صوفیانو تر منځ شخړه موجود ده . عالمان پری د حرمت روایتونه او صوفیان پری دا باحت روایتونه راوړی. دواړه لوری ښکر په ښکر دی.

خوشحال خان وائی: چه قاضی مفتی دی د سماع په منع کولو کښی مبالغه نه که چه په قطعی نص سره د سرود حرمت ثابت نه دی

د صوفیانو د سماع په باره کښی هسی وائی:

| | |
|---|---|
| سرود هورته دی روا | چه نه غاووی نه غوغا |
| سامعان ئی صاحبدل وی | نه ئی نفس نه ئی هوا |



---

(۱) وندر ـ د جعفر اخکزی اثر د کو یټی چاپ ص ۱۳۴

# دموسیقی اغیزه او اهمیت

موسیقی هغه خوازه آهنگونه او غبزونه دي چه د تولو لطیفو او نفیسو هنرونو په شان په زړونو کښې زیات اغیز او اثر کوي موسیقي د شعر، رسامۍ، او نڅا په څیر یو غوره هنر او لطیف فن دی. شعر او موسیقي د یوه حقیقت دوه بېلې جلوې دي، کوم حقیقت چه د شعر په لفظونو کښې ښکاره کیږي هغه د موسیقي په آهنگونو کښې ځان څرګندوي موسیقي د غم او خوشحالۍ دواړو ښه ملګري دي ـ ساز او سرود په ویر او غم کښې هم د سړي دزړه ښه تسلي کولای شي. موسیقي د روح غذا ء (۱) د زړه قوت د فکر ځلا او دژوند ښکلا ده، موسیقي، نڅا او شعر دري واړه د بشر د پټو احساساتو او جذباتو یوه ځلنده روښانه هنداره ده دزړه او دماغ ډیر سپېڅلي اور نلیین جذبات په شعر کښې د الفاظو، په نڅا کښې د حرکاتو او په موسیقي کښې د آهنګ او تال په واسطه څرګندیږي

امام غزالي وائي چه ښکلا او جمال دښایسته شي د توکوا و بڅر و تناسب ته وائي په موسیقي کښې د غبزونو او آهنګونو تناسب ډېر زیات دی، نو ځکه له جمال، سره ډېر ارتباط لري او په دغه وجه د زړه تنابونه په نوځیدو او شوق په زنګیدو راولي، موسیقي د جنګ په وخت کښې یو او به وسله او د کړي په وخت کښې یوه ستره سا تیري او خوشحالي ده کوم قوم او اولس چه خپله موسیقي نه لري هغه داسي دی لکه بلبل چه آواز نه لري،

هر ساکښ د موسیقي په اورید وسره خپل حالت بدلوي او په رنګ او څیره کښې ئې د تاثیر نښې ښکاریږي. واړه ماشومان ده ورد خوږې للو

(۱) غبار خاطر ص ۳۳۳

په اوریدو له ژړانه لاس اخلي او په خوږ آواز ویده کیږي د عسکرو په رګو نو او پاو کښې د موزیك په اورید و یو زبر دست جوش پیدا کیږي او غږی ئې په غور ځنګ راځي د شپنو د شپیلۍ خوږ آواز د کوهو و زو د ځر یا و سره یو ره مرسته کوي ، کوم وخت چه د غه غبرغلی شي نو بیا ځرنه کوي او یو ي خوا بلې خواته ګوري . او ښبان د خوږ آواز او خوږ ي نغمې په اوریدو سره مستیږي عربي سار وانان چه او ښانو ته د (حدی ) نغمه شروع کړي نو بیا اوښان په شپو شپو مزلونه کوي او پروائې هم نه وي . اس ته چه تر شو شپیلي ونه وهل شي ، او به نه څښي ، ماران د بین باجې په اوریدو دستي له سوړو څخه راوځي . د بین خواله راځي او د پا ډو ګر داو دي په کرښمه کښې را ګیر یږي وائې چه دریایي هیږي او سیند لاه وان هم د موسیقي په اوریدو پوره مستیږي ، په دې ډول هر ساکښ د موسیقي دا غیز او تاثیر په کرښمه سرا ئښې دي د نړۍ په سر کسو نو کښ د موسیقي په واسطه په ځناورو او ښاورو یو باندې راز راز ننداري کوي . د پیلانو نه اوی ځناور د موسیقي د تاثیر لاندې داسې راوستل کیږي چه د باجي په اوریدو سرغوړځوي او په نڅا را ځي ز مو نږ په هیواد کښې هم ډیر ښکاریان د خوږو غږو نو او نارو په ذریعه ډ ېرې مرغۍ په دامونو او لو مو کښې را ګیروي . ډینګي یوه مرغۍ ده چه په مخصوص غږو ر ته هله ډینګۍ وائې نو بیائې سمدلاسه سر په لومه کښې ننتی وي ،

مولانا ابوالکلام آزاد په غبار خاطر کښې د ورا ۃ په حواله لیکلي دي: چه د داؤد پیغمبر نغمو به ما ر غان بې خوده کول د عربي موسیقي په تاریخ کښې لیکل شوي دي چه مارغان او ځنا ور به د داؤد پیغمبر خوږو نغمو ته را تولیدل او د ده له مبارکې مرۍ څخه دوه آویا نغمې وتلې (۱)

---

(۱) نمبر ص ۴۷ ،

ابوریحان البیروني په کتاب الهند کښې دراګ په واسطه د ښکار کولو
دلاروچارو یادونه کړې ده دې وائي ما په خپله لیدلي دي چه د ښکاري دراګ
په واسطه په لاسو وه هوسۍ نیولې وه »
هجویري په کشف المحجوب کښې لیکلي دي چه
د موسیقي په واسطه د هوسیو نیول آسان دي او په هند کښې د وحشي
غرڅنیو او لپاره د سازله نغمو نه کار اخلي د موسیقي د هغوی په ښارو او وساکو و
کښې د موسیقي تاثیر یو مثلي حقیقت ګڼي وایي چه د هندوستان مغولي اکبر او
جهانګیر په وخت کښې (د قمرغه) ښکار د موسیقي او سرود په واسطه کیده (۱)
خوشحال خټک په دستار نامه کښې لیکي: د سرود په آواز او ښان مستیږي او
د بیدیا هوسۍ پرې بې هوشه کیږي، خوږ آواز او خوږه نغمه د داؤد پیغمبر
معجزه وه دده په خوږ آواز به د هوا مرغان له اسمانه را پرېوتل د موسیقي
د سحرناک تاثیر او اغیز په باره کښې ډېرې روایتونه او کیسې هم شته دي،
د هر یو او یو سندر پوهانو لکه ابراهیم موصلي، اسحاق موصلي او زریاب په
ویل چه د موسیقي خوږې نغمې پریا وراښوولي دي د ساز د اثر په باره
کښې ابن خلکان (۲ جلد ۷۷ مخ) د فارابي یوه کیسه راوړې ده چې لیکي چه فارابي
د هر خوږ ښندوی ؤ یو وخت د یو بادشاه دربار ته د خپل هنر د ښکاره کولو
دپاره ولاړ هلته پرې د چا باور نه راته مګر کله چه ده له کڅوړې نه خپل
کړې ساز راوویست او په سازلې شروع وکړه نو په لومړي نغمې خلک د ر
خندول، په دوهمه لې وژړول او په دریمه لې ویده کړل دغه وخت فارابي دوی
هماغه شان ویده پرېښول او دی په خپله مخه ولاړ.
د موسیقي د تاثیر بله کیسه د عبدالمؤمن صفي الدین ده: وایي کوم وخت
چه هلاکو په (۱۲۵۸ م) کي په بغداد یرغل راووړ او په لوټ تالان لې پیل وکړ نو
صفي الدین ورغی داسې ئې ودلې ورته وواهه چه دی لې بې خوده کړ او په دې وجه

(۱) بهار خاطر ص ۳۳۳،

ددوه سرو او مال له لوټ څخه پاتې شول، د انسان په اخلاقو کښې هم د موسیقي تاثیر ثابت او منلی دی.

ډیر بدخویه خلک د خوږو نغمو په اوریدو له خپل بدخوئي نه ګرځیدلي دي په نننۍ دنیا کښې د بندیانو د اخلاقو د سمولو د پاره د موسیقي نغمې یو ښه علاج ګڼل شوی دی او په ازمېښت جوته شوې ده چه موسیقي د نفس په تهذیب او سپیڅلتیا کښې ډیر زیات اثر لري، په موجوده وخت کښې د موسیقي په واسطه د ډیرو رنځونو علاج هم کیږي د نړۍ په ډیرو شفاخانو کښې اوس موسیقي شعبه پوره کار اخستل کیږي په تیره د روحي او دماغي رنځونو د ښیګړې د پاره د موسیقي نغمې یو غوره علاج ګڼل کیږي، په امریکا کښې د ارکستر اهالو تو ته ډیر رنځوران په ګرځندو چپرکټونو کښې راوړل کیږي، په پخوانی زمانه کښې هم د رنځورانو د پاره موسیقي سود من بلل شوی دی، د اخوان الصفا د موسیقي په رساله کښې لیکل شوي دي چه موسیقي د نسارو غاړو دردونه لیږي او هره نغمه په نفس کښې یو خاص اثر لري

فارابي هم په خپل کتاب کښې د موسیقي په واسطه د علاج لارې چارې ښودلي دي (۱) غرض دا چه د موسیقي تاثیر په روح او وجود، د وینې په ګرځیدو، د غذا په هضمیدو، د پلو او غړو په ویښیدو او خوځیدو کښې ثابت او منلی شوی دی مګر دې خبرې علت چه د موسیقي خوږې نغمې ولې په انساني روح او نورو ژوو کښې دومره اثر لري تر اوسه چا نه دی ثرګند کړی او د فطرت او قدرت په دې پټ راز لا تر اوسه څوک نه دی پوه شوی.

---

۱) د خپلواک مجله د ...ر چاپ د (۱۹۵۸) دسمبر ګڼه.

# دموسیقی نغمی،مقامونه، راگونه، نوبتونه

دا ابن‌سینا‌لیکنی‌معلومیبزي‌چه‌دده‌په‌وخت کښې‌دولس‌نغمې مشهورې وې ده هره نغمه د(جماعته) په نامه یاده کړېده . دصفی‌الدین په زمانه کښې دغه(۱۲)ستري نغمې‌دمقامونوپه نامه یاد ېد ی او هره‌نغمه‌یومقامۇ. دده‌په وخت کښې شپږ نغمې‌د( آوازونو) په نامه مشهورې وې ، مګردغه نغمې فرعي‌نغمې‌بلل کېدې . دصفی‌الدین‌په(الادوار) نومې کتاب کښې‌دمقامونو او آوازونونومونه‌دادي :

مقامونه : عشاق ، نوا ، ابوسلیک ، راست ، عراق ، اصفهان ، زیرافکند ، بزرګ ، زنګوله ، راهوی ، حسینی ،حجازی.

آوازونه : کواشت ،کردانیته ، نوروز ، سلک ، مایه، شهناز(۱) مګراندلس‌په اصطلاح کښې‌څه فرق موجودو ٔ د(معرفة النغمات‌الثمان) په‌رساله کښې دغه څلوراصول ذکرشوی‌دی(دیل ، زیدان، مزموم ،مایته) له‌دې‌هریوه‌څخه شپږفرعی نغمې‌راوتلې‌دی‌چه ټولې‌څلر ویشت کیبزي .

ابن زیله دا ابن سیناشاګردو،( دستان، خراسان،اصفهان) په نوموهم‌څینې نغمې‌راوړی‌دي‌چه په عربي موسیقی کښې ئې شهرت نه دراود( ۲ )

ابن‌سینا وائې‌چه‌دموسیقی نوموړی‌نغمې دخاصیتونواووختونوپه‌لحاظ سره جلاجلا وی . هره نغمه اومقام بېل‌بېل وخت لری لکه : د(راهوی) نغمه‌چرګ بنګ مال اوحسینی‌په‌سپیدوچاود کښې ویل‌پکاردی دراست دویلووخت‌لمرخاته مال ، دابوسلیک وخت څاښت ، دزنګولا وخت

(۱) تمدنع ص ۲ : ۲

(۲) اذیع ص ۲۴۳

که په دیشاق وخت، د سپیدین د حجاز وخت، او د مازیگر د عراق وخت، د مازدیگر او د اصفهان وخت لمر پسر یوا ته مال دی ،

نوا په ما ښام کښې ، بزرگ په ما سخوتن کښې اوز یرافگن په نیمه شپه کښې ویل په کاردی(۱) په دې مقامونو کښې (عشاق ، بو سلیک ، نوا) د زړورتیا او شجاعت فائده ښې ، یعنې په اوریدو نکو کښې زړورتیا پیدا کوي ،(راست ، اصفهان او عراق) خوشحالي او تازه گي راولي(راهوي ، حسیني ، او حجاز) مستي او جوش پیدا کوي او( بزرگ ، زیرافگن او (زنگوله) غم او خپگان ښکاره کوي

د یونان حکیمانو د آسمان د دولس و برجونو په شمار د موسیقي دپاره دولس مقامونه را ویستلي دي ، د غه دولس مقامونه د شپې ورځې د ساعتونو په حساب څلیر ویشت خانگې او د غه خانگې بیا د یوه کال دور ځو په شمیر دري سوه شپیته نغمې لري.

په هندي موسیقي کښې او ه تاله داو او په توگه منل شوي دي او هغه دادي: (سرج ، رکهپ ، گندهار ، مدهم ، دهیوت ، نکهار) چه په سپك دول د (سا ـ ري ـ گا ـ ما ـ پا ـ دها ـ نی په توروپا دیبزی)

فرعي تالونه دوه ویشت بولي د سرونو او تالونو خاص ترتیب ته( ثاتهه) وائی د (ثاتهه) شمیر (لس) منودل شوی دی: ( کلیان ، بلاول ، کهاوج ، بهیرون ، پوروی ، ماروا ، کافی ، اساوری ، بهیروین ، توری ،

د هند سنسر پوهان وائی چه هر راگ له ثاتهه نه پیدا کیبزی ، راگ د تالونو او سرونو د خاص ترتیب نوم دی چه په غوز ونوښه ولگیبزی. په راگ کښې لبز تر لبزه پنځه سره یو ځای کیبزی. وائی چه راگونه زښت ډیردی

(۱) تمع ص ۲۳۲

مګر د مشهورو نومونه ئې دادي:
راګ، ایمن، کلیان چه د ماښام په وخت غږول کیږي. راګ بلاول، ګهیلج ویل کیږي، راګ کماوج، تیر ماښام غږول کیږي، راګ بهیرون ګهیلج مال ویل کیږي، راګ پوروي، ماښام مسال غږول کیږي، دراګ مارواء دو یا و وخت تېر مازیګري دي، راګ کافي نیمه شپه ویل کیږي، راګ اساوري دورځی په دوهم پار کښې غږول کیږي، دراګ پوروي دغږولو وخت سهار دي.

راګ توري، دغه شان د (بهوپالي، پیاو، مالکوس) په نامه هم راګونه شته دي، دغه ټول دیسي راګونه دي چه پوهانو جوړ کړي دي. یو بل قسم راګ د (مارګ) په نامه یادیږي چه ددی وانور اویستون دي ددې قسم راګونو نومونه دادي: (دهرپد، سادهرا هوری)، په هند کښې ځینې راګونه دوروستیو زمانې پیدایښت دی لکه خیال چه سلطان حسین شاه شرقي راویستی دی ترانه، غزل، قول، نقش و ګل چه د امیرخسرو ایجاد دی. او د نورو نومونه دادي: ټپه، تروټ، چترنګ، سرګم، هولي، تهمري، دادره، په هندي اصطلاح کښې د «سر، سرتهی، راګ، راګني» نومونه هم شته دي، دهارس ددوهم خسرو په وخت کښې (باربد) نومی یو حکیم اوه پاچائی راګونه، دېرش نغمې او (۳٦۰) راګکي ایجاد کړي وو (۱)

په پښتو موسیقی او سندرو کښې اوس هم د (مقام) اصطلاح شته دی. مثلا وائي: چه ښه مقام ئې و غږواه، یعنی ښه راګ او ښه نغمه ئې وویله، درحمان بابا غزلونه زیات دمقام په نامه بلل کیږي مثلاً وائی درحمان بابا یو مقام وو ایه.

نوبتونه:
دنوبت اصطلاح په اسلامی دوره پوری اړه لري، عبدالقادر ابن غیبی وائې چه نوبت یو قدیمی شی دی او په څلورو پارچو شامل دی (القول، الغزل، الترانه، الفروداشت) نوبت غږول په اول سر کښې

(۱) د آجکل مجله (۱۹۵٦ع، داګست ګڼه ص ۱۲ ـ او ۱۳)

دخپلواکۍ او خلافت یوه نښه وه ، پخوا نوبت غږول دخلافت په مرکز ونوپوری خاص ؤ او دخلیفه پهدربار کښې! به پنځه وخته نوبتونه غږیدل(۱) . کوزلاسو امیرانو ته بههم ددری وختیزنوبت غږولواجازه کیدله.وائی چهعضدالدولة بویهی ته ددري وختیز نوبت اجازه شوی وه دمصردفاطمیانو پهعصر کښې بهدعسکری باجه خانی په واسطهنوبت غږیده.ددوی پهعسکری موزیك کښې (تورم،سورنی،ډول،ډماهواوتبله) موجود وو.وائی چه امیرصلاح الدین تهپه دمشق کښې پنځه وخته نوبت غږیده(۲).غیاث الدین غوری بهله ځانه سره دسروزرونغاري په بارگیرو بار کړیولې.

دنوبت دغه اصطلاح په پښتو ادب کښې هم شته اودخکلو پهژبه کښې هم موجوده ده.

حمیدوائی:

رهښته په مرګیحال ستاله بیلتونه — درقیب سرهوهی ته نوبتونه

هجری وائی:

چهآغاز پهسهرگاه دشاه نوبت کا — راپهیاددغه تیرعمرنوبت کا

پوهان اچاوړای دی:

سهرسبادی نوبت غږیږی — غافله پاځه بلبل چغیږی

---

(۱) لمع ص ۲۴۵
(۲) لمع ص ۲۴۶

## عربی موسیقی

پەاسلامی دورە کښې دعربو دموسیقی تاریخ ډیر روښانه دی ، مګر تر اسلام دمخه هغو مره څرګند نەدی . که څه هم (جارفارمر) دګلاسکو دپوهنتون استاد لیکلی دی چه دجاهلیت په زمانه کښې یعنی تر اسلام پخوا اهم پەعربو کښې دموسیقی اوساز سرودرواج زیات ؤ . په اخترونو او نورو ښادیو کښې به ښځو تمباو نه وهل او هرډول سازونه به ئې کښول . دی وائي چه موسیقی دعربو په عام ژوند کښې نفوذ ؤ او هر یو ښته من عرب به وه سرود کړه نجلۍ ساتله . ( ۱ )

مګر ډاکتر براون وائي : چه دعربو موسیقی داسلام نه پخوا یو ساده شکل درلود او عرب د غه وخت دیلو او بیلو نغمو په یو ځای کولو نه پوهیدل او پەهارمونی بلد نەوو (۲) . دموسیقی دنورو پوهانو نظریه داده چەعربی موسیقی تر اسلام پخوا دیونانی ، پارسی اوخراسانی موسیقی داثر لاندی وه او له دغو شخه ئې زیا ته اخستنه کړیده (۳)

جارفارمر پەعربی موسیقی کښې دخراسانی موسیقی پوره اثرمنی او وائي چه پارسی افکار او بیاخاص خراسانی افکار د عربو په عام ثقافت کښې نفوتی دی . دی وائي چه پەختیځ کښې دسامانیانو دوری دایرانی فن دپاره هم لیاره برابره او ضافه کړه (٤)

داهم وائي چه عربی موسیقی دیونانی موسیقی پشان ساده او له یوستوو آهنګو نو شخه جوړه ده ، دعربی موسیقی ایره هغه دولس راګونه دی

---

( ۱ ) تمیع ص ۱۹
( ۲ ) تمیع ص ۲۳
( ۳ ) ظهارخاطر ص ۳۱۸
( ٤ ) تمیع ص ۱۲۲ه

چه له یونانی موسیقی څخه اخستل شوی دی . عربی موسیقی له یونانی موسیقی څخه نور هم ډیر آهنګونه اخستي دي او دفیثاغورث د ګامونو پیروی ئې کړې ده . ولی په دې کښې هیڅ شک نشته چه په اسلامی دوره کښې دعربی موسیقی دشهرت انګازې هرې خواته تللی دی او په هرڅای او هر ځای ئې دخوږ ونغمو اثر پروت دی . داسلام درا تلونه وروسته چه د موسیقی مرکزؤ او بیا وروسته بغداد دمشق ، قرطبه او قاهره دموسیقی د پالنی اوروزنې ستر مرکز ونه شول . په عربی موسیقی کښې لوړې سمون ، بدلـون اوژونـدون اسحق موصلی او بیاوروسته صفی الدین راوستی دی چه دوا ړه دعباسیانو په مرکز بغداد کښې اوسېدل .
عربی سندرېوهانو په آخر کښې دیونانیانوطرزونه واړول او نوی طرزونه ئې راوویستـل. تردې چه دموسیقی په فن کښې ئې په یونـانیانوهم پښه واړوله (۱) فارابی اوابن سیناهم دموسیقی په فن کښې ډیر څه زیات کړل . داسلامی دورې هریولوی اوسترعالم دموسیقی په باب څامخا یو کتاب لیایوه رساله لیکلی ده . علی بن حسین بن محمد الاصفهانی په ( الاغانی الـکبیر ) کښې دعربو دموسیقی د زړو کالو تاریخ په ډیر تفصیل تـکی په تکی بیان کړی دی چه په وروسته کرښو کښې به ئې ته په لنډ ډول اشاره وکړی شی .
عربی موسیقی په موجوده وخت کښې ښه نوم او شهرت مومندلی دی دام کلثوم ، عبدالوهاب لیلی مراداو نورو عربی سندر غاړوخوږو حنجرو دعربی موسیقی دې درجې ته ورسوله ، چه دختیځ راډیو ګان ددوی دخوږو تیکلوله غږو او په غیر شپه نشی سبا کولای نن عربی موسیقی به هرځای کښې زیات شهرت او نوم لری او وریه وئی ته ئی ډیر زړونه تږی او لېوالـه دی .

( ۱ ) دچارقار مرمقاله .

# د عربی ساز آلی

جارفارمر په خپل کتاب د عربو دموسیقی تاریخ » کښې لیکلی دی :

چه عربو دجاهلیت په زمانه کښې هم دساز آلې دراودې اود (عود، د ف ، طبل ، مزهر ، موتر ) په نومو یادیدلې (۱) چنګ او تنبورهم پکښې رواج درلودمګر دغه دواړه آلې ئې له خراسان او باخترنه اخستی دی چنګ د عربو په نظر کښې دقانون یو قسم دی چه دوی ئې (صنج ) بولی او په انګریزی هارپ نو میږی . وائی چه عودهم عربوله خراسان څخه اخستی دی . پخوانی عود څلور تاره درلودل چه په خراسان کښې څلور تار باله شو . د غه څلور تاریز عود په عربو کښې ( زلزل) نومی سندر غاړی په کامل عود دواړاوه او د(عودالشبوط) په نامه ئې یاد کړ(۲) پس له هغه پنځم تار پکښې (زریاب) نومی موسیقی پوهانه زیات کړ . په عربی روایاتو کښې وائی چه (عود )د( لامک) اختراع ده ، طبل او دف ددوی (توبال ایجاددی (۳) پسې دول د عربی سازپه آلو کښې نوري هم ډیری آلی له بوځای بل ځای نه اخستل شوی دی ، وائی چه دقو بوز ( اوزان) دعود له خیله د و ه ترکی آ لی دی چه دا وبیانو په وخت کښې مصر ته راغلی دی ، دغه وخت قو بوز پنځه تاره او( اوزان) دري تاره درلودل ، په اندلس کښې د ساز یوه آ له (قیثاره) نومیدله (٤) په عربو کښې دعود له خیله نوري آ لی د(المزدر ، بربط ، کران ، موتر) په نومو یادیږی چه ځینی کسان دغه ټولی آلی یوشی بولی .

(۱) لمیع ص ۲۵
(۲) لمیع ص ۱٤٥
(۳) لمیع ص ۱۵
(٤) لمیع ص ۲٤۸

قانون او نزهته هم په عربی آلو کښې راغلي دي ، د لته وروسته آله دعبدالمؤمن صفي الدين رځ و نه ده په (كنز التحف) كښې راوړي دي(۱) چه صفي الدين د (المغني) په نامه يوه آله راويستلي وه چه هم قانون ته ورته وه اوهم عود ته ،

سورني او شپيلۍ هم په عربي ساز كښې شته مگر په اصل كښې له باختر نه تللي دي ، په عربي ساز كښې چه اوس كومې آلې وجودي دي نو ونه ئي دادي : (مزمار ، سرناى ، ناي ، اشبابة ، الصفارة ،اليراع ، الشاهين ، الزماره ، الزلامي ، القصبه ، البوق ، النفير ، ارغنون ، ارغونيقي ، كوس ، نقاره ، دبداب ، القصعه ،طبل المركب ، الدف ، الطبل الطويل او نور )

عربي سندرپوهاندا و سندرغاړي ،

دعربي موسيقى او ى مؤرخ الاصفهاني په (الاغانى) كښې ليكي چه د اسلام د دوري لومړى عربي سندرغاړى (طويس ) نو ميد ، چه په مدينه كښې زيږ يدلې دي . ده ددريم خليفه په زمانه كښې شهرت وموند وائې چه ده په تمبل له ځانه سره په شادر كښې كار كاوه .

طويس نرښځى ؤ اودده مشهور شاگرد ( دلال نافذ ) هم نرښځي او ښه سرود كرؤ .

المسعودي ليكلي دي چه عبدالله بن جعفر د موسيقى سره مينه درلودله ده ځای د موسيقى د پالنې مركز ؤ ده دخپل عصر دمشهورو سندر غاړو لكه طويس ، سايب خاثر ، نشيط ، نافع الخير ، بديح المليح او نورو پالنه كوله دغه شان عاشيه در بنت سعد ، مصعب بن زبيد ،عايشه بنت هم

---

(۱) قمع ص ۲٤۸

دموسیقی له طرفه دارا و شغه وو(١)
د (الاغانی) په روایت عزة المیلاد او ابن سریج یو ځل دسکینې بنت حسین
په کتاله کښې دخلکو دوړاندې ساز کړی ؤ.
دمدینې اومکې په سندر غاړو کښې نور مشهور کسان هم شته لکه
قند اِ لمدنی چه دسعدبن ابی وقاص آزاد کړی مریی ؤ
دبنی امیة خلیفه ګان و په زمانه کښې هم عربی موسیقي ته پوره توجه
شوی ده او په دغه وخت کښې زیات سندر غاړی پالل شوی اور وزل
شوي دي واېي چه لومړی یزید(٦٨٣ع) د موسیقی سره ډیره علاقه درلود له
بشرا و عبدالملك دمروان زامن پخپله هم په موسیقي پوهیدل.
دلومړی ولید (٧١٥ع) په وخت کښې موسیقی ښه پرمخ تګ وکړ.
دوهم یزید (٧٢٤ع) هم دموسیقی شوقمن ؤ. دوهم ولید (٧٤٣ع) خو په
موسیقي کښې ډوب ؤ. ده به (معبد) نومی سندرغاړی ته (١٢٠٠٠) دیناره
معاش ورکاوه (٢) دامو یانو دزمانې مشهور سندر غاړی دادی.
ابن سریج ابن مسجع سعبدالغریض، عطارد، مالك، ابن عایشه عمرا والدي،
نشیطر، ابن محرز.
په ښځینه سندر غاړو کښې عزة المیلاء، جمیله، حبابـة، سلامة،
عقیله دزیات شهرت خاوندانې دي.
دعباسي خلیفه ګان و په وخت کښې هم دنورو لطیفه فنونو په شان
موسیقي ته هم زیاته توجه شوی ده، په دې دوره، کښې بغداد دعلم، ادب،
شعراو موسیقی دپالنې مهم مرکز ؤ. په دې پالنه کښې دبلخ دبرمکی کورنۍ

(١) تمع ص ٢ع
(٢) تمع ص ٩٩

کور نیه اوبان لکه: خالد، یحیی، جعفر او فضل هم لوی لاس لری،
په عباسی خلیفه گانو کښې مهدی د منصور زوی او هادی، د موسیقی له پیناو شخه وو.

وائي چه هادی په یو ځل باندی ابراهیم موصلی ته (۱) یو نیم لك دیناره ور کړی وو. سیاط او ابراهیم الموصلی د دوی د دربار مشهور سندرغاړي وو. وایی چه ابراهیم په بغداد کښې د موسیقی د زده کړې یوه مدرسه جوړه کړې وه. د هارون الرشید دربار خود موسیقی له فنکارانو شخه خولي ترخولي ډك و. د هارون خور (عایة) هم په موسیقی پوهیدله.

د دې دربار مشهور سرود گر او سندر غاړي دا دی:
حکم الوادی، ابن جامع، مخارق، یزید حورا، زلزل، حنین، محمد بن حارث، فلیح بن ابی العور، د هارون الرشید د دربار تر ټولو مشهور سندر بوله هانه اسحق موصلی دی. وائي چه په عربی موسیقی کښې له ده نه زیات پوه او عالم نه دی تیر شوی. امین د هارون زوی به خپل ټول وخت له سندرغاړو سره تیراوه. د مامون په زمانه کښې د بغداد په بیت الحکمة کښې د موسیقی تدریس هم شروع شو، خلیفه الواثق په خپله هم په موسیقی پوهیده او شبه ... د به ئی وا هه (۲) دغه وخت په بغداد کښې د موسیقی دوه ډلې موجودې وې یوه د اسحق موصلی او بله د ابراهیم بن المهدی ډله وه چه او مړی د لرغونی موسیقی او دوهمه د نوی موسیقی ملګري وه.

په عباسی دوره کښې ځینې نوراوی اووازه سندرغاړي تیر شویدي لکه ابو صدقة، ابو الحسن علی بن عبدالله، محمد بن حمزة، اسمعیل بن هربند،

---

(۱) تمع ص ۱۱۱
(۲) تمع ص ۱۱۵

برصوما،زنام،دادواړه دابراهیم موصلي شاگردان وو وائی چه زنام،وه شپیلۍ هم جوړه کړی وه چه (زلدمی) نومیدله ( ۱ ) زبیر بن رحمان دمکی سندر غاړیؤ.

دعباسي دوری په ښځمنو کښي بصبص ، عریب ، عبیده مشهوري سندر غاړی وی،وائی چه‌د (عریب)دوه‌زره آهنگونه یادوواوپه تنبوریه مشهوره‌وه‌ولی چه ډیرزورورتنبوریی غبزاوه .

شاریته،بذل،دنانیر، محجوبه هم‌ددغه وخت نومیالۍ سند ر غاړ ې ده غرض‌داچه‌دعباسی‌خلافت په‌طلائی‌دوره کښي‌عربي‌موسیقی ښه وده کړې‌ده اودغه دوره دموسیقی د ترقۍ یوه‌رو ښانه اوځلا نده دوره گڼل کیږی ددې طلائې دورې دخوند اولذت قصی په الف لیله کښې اوس هم ډیر زړونه په جوش اومستۍ را وستلا ی‌شي .

په اندلس کښې هم دموسیقی انگـازې ختلې ، دو هم عبدالـرحمن (۸۲۲ ع )دموسیقی‌یوز بردست پالونکی‌ؤ. زریاب دده ددربار یوډ پرمشهور اونومیالی سندرپوهاند دی .

زر یاب ول په بغداد کښې ؤاوداسحق یو‌یوه شاگردؤ مگر بیاداستاد دوخې په و جه اندلس‌ته ولاړاوددوهم عبدالرحمن په‌دربار کښې دلوړې درجی ماخاوند شو .

دده سره یې په یوه کاسه ډوډۍ خوړ له اوځلویښت زره دیناره ئې روزینه ور کړله . زریاب په(قرطبه) کښې د موسیقی یوه‌لویه مدرسه‌هم جوړه کړی وه . وائي چه زریاب په عود کښې پنځم‌تارزیات کړی ؤاو دگرگس له‌پنجوئې شاباز جوړ کړی ؤ( ۲) په اندلس کښې داشبیلی‌ښار

(۱) تمع ص ۱۵۵

دموسیقی مرکزؤ اوډیر نومیالی سندر غاړی اوسندرپوهاند پکښې منځ ته راووتل.

په اندلس کښې نورهم مشهورسندر غاړی تیرشوی دی لکه عباس ، منصور، عبدالوهاب ،ابوالمجد ،ابوالفضل ، ابن ناقیا، اسحاق ،اوپه ښځو کښې . ولادة،هنده،نزهةاو نوری یادیږی .

دمصرفاطمی خلیفه ګانوهم دموسیقی شوقمن او پالونکی وواوددوی په وخت په مصر کښې موسیقی ښه ترقی کړې وه .

دمصرایوبیان هم دموسیقی په برخه کښې بی علاقې نه وواوابوزکریااو ابونصرددغه وخت مشهورسندرپوهاند دی. (۱)

### دعربی موسیقی پوهان اوددوی آثار:

د موجوده معلوماتوله مخه دعربی موسیقی لو مړی اثر دامو یا نوپه وخت کښې (یونس الکاتب) لیکلی دی چه (الاغانی) نومیږی.

خلیل بن احمد( النغم او الایقاع) په نوموړوه کتابه لیکلی او دموسیقی قاعدې ئې جوړې کړی دی بدعباسیا نو په وخت کښې د غه وروسته کتابونه لیکل شوی دی :

دیحیی الملکی له خواد الا غانی کتاب،داحمد بن یحیی له خوا ( مجردفی الاغانی )،یعقوب بن اسحق الکندی ( ۸۱۳م) د عربویو ستر فیلسوف دی ، وائی چه ده په موسیقی کښی اوه کتابه لیکلی دی مګر په عمومی کتابخانو کښی دده دوه رسالی موجودی دی یوه د آهنګونو دتر کیب رساله چه د ا کسفو رډ په کتابخانه کښې ده او بله دموسیقی اجزاورساله چه دبرلین په کتابخانه کښې ده .

ابوزیدحینین له یونانی څخه دموسیقی یو کتاب په عربی ترجمه کړی دی

(۱) نیم ص ۲۲۸

چه‌قلمی نسخه‌ئی ده .و نیخ په کتابخانه کښې شته «١»

بذل‌الاغانی په نامه یو کتاب لری.د نانیر هم د( مجرد الاغانی) په نامه یو کتاب کښلی دی.

محمد بن محمود آملی په (نفایس الفنون فی عرایس العیون) کښې د موسیقی تاریخی شیرنه کړیده.

ابن الکلبی (٨١٩م) دالنغم او کتاب القیان په نامه دوه مشهور کتابونه ښکلی دی چه د موسیقی او ادب اساس او بنیاد کڼل کیږی. اسحق موصلی د( الاغانی) په نامه یو مهم کتاب لیکلی ؤ.

خلیفه المعتز(٨٦٦م) د(شارية)دسندرو په باب یو کتاب درلود.

احمدبن‌الطیب السرخسی (٨٩٩م ) دالموسیقی الکبیر مؤلف دی.

ابونصرفارابی په موسیقی کښې ډیر آثار لیکلی دی. دده د (الموسیقی الکبیر) نومی کتاب ډیر مشهور دی.یوه نسخه ئی د(مادرید)په کتابخانه کښې شته.

زریاب په اندلس کښې د موسیقی لوی عالم او مؤلف دی. دی د(الاغانی ) په نامه یو مهم کتاب لری بل کتاب ئی ( الآلات الموسیقیه ) نومیږی( ٢ )

نفخ‌الطیب نومی کتاب لیکی چه دده غوندی خوز آوازی به بیا څوك پیدا نشی (٣)محمدبن زکریارازی د(مجمل فی موسیقی)خاوندی.

ثابت بن قره هم یو نومیالی موسیقی پوهاند دی.

---

(١)تمیع ص ١٤٩

(٢)دهلو الك مجله د چاپ د١٩٥٨ ددسنبر گنه.

(٣)دزریاب په نامه دیهور دځار شمالیخوا ته یوه نوی ودانی شوی ده چه دزریاب کسالونی نومیږی.

علي بن حسين بن علي المسعو دي ( ٩٥٧ م ) دعر بو ستر مؤرخ په مروج الذهب كښې په موسيقى باندى يو فصل ليكلى دى دى د موسيقى ، رقص لونغو په باب ومفصل كتاب هم لرى دغه شان د( الزلف ) په نامه هم د نغمو او تارو نو په مناسبت كښې يو اثر لرى (١) علي بن حسين بن محمد الاصفهانى (٩٦٧م) د الاغانى الكبير په نامه يو ډير ستر كتاب لرى چه د عربو د موسيقى د زرو كالو تاريخ پكښې بيان شوى دى . دا كتاب په ٢٠ جلده كښې په ١٨٦٩ كښې چاپ شوى دى. ابن خلدون ورته د عربو د وان واثي . ابو خشيشه د المغنى الجديد ، په نامه يو اثر ليكلى دى .

جحظة البرمكى (٩٣٨م) ، د تنبور يا ز تاريخ كښلى دى . ابن عبدالله په اندلس كښې د( العقد الفريد )په نامه يو مشهور اثر لرى چه يو فصل ئې د موسيقى دلحنو نو په باب دى .

عبيداله بن خردادبه (٩١٢م) هم په موسيقى كښې يو كتاب درلود ، دده پلار د خراسان والى اودى د اسحق موصلى شاگرد و .

منصور بن طلحة د( مؤنس فى الموسيقى ) ليكونكى دى .

حسن بن موسى د الاغانى په نامه يو كتاب ليكلى دى .

ابن الضبى (٢٦٠م) چه په بغداد كښې د شافعى فقهې عالم و د عود او ملاهى په نامه يو كتاب لرى . ابو الفرج محمد بن اسحق البغدادى (٩٩٦م) د( الفهرست ) په نامه يو مهم كتاب ليكلى دى چه د موسيقى د يو هاتو په باب ښه معلومات لرى . په دغه كتاب كښې د موسيقى ډير كتابونه ذكر شوى دى چه اوس نه پيدا كيږي ، محمد بن احمد الخوارزى (٩٩٧م) د مفاتيح العلوم په اووم

---

(١) سمع ص ١٩٠

باب کښې دموسيقۍ په باب پرېښه تاريخي معلومات راغونډه کړې دي (١)

داخوان الصفا په (٥١) رسالو کښې يوه رساله دموسيقۍ په باب ليکل شوې ده (٢) ابوالوفاء البوزجاني (٩٩٨) د (مختصر في فن الايقاع) په نامه يو اثر لري. المجريطي اندلسي او ابن يونس المصري (١٠٠٩ ع) چه دریاضي لوی عالمان وو په موسيقۍ کښې هم رسالې لري.

حسين بن علي المغربي (١٠٢٧ م) دالاغاني د کتاب تولګه نکې دی.

محمد بن عبيدالله دمختار الاغاني په نامه يو کتاب کښلی دی.

ابن الهيثم البصري (١٠٣٩ م) په دې نامه يوه رساله لري چه نوم ئې دی (رسالة في تأثيرات اللحون الموسيقية في النفوس الحيوانية) (٣)

حجة الاسلام امام غزالي (١١١١ م) هم داحياء العلوم او وم فصل دسماع په باب ليکلی دی او دسماع پوره ملګرتيائې کړې ده.

دغه شان ده ورور مجدالدين احمد بن محمد هم په بوارق السماع، کښې دموسيقۍ په باب خبرې کړې ده (٤)

د (١٢) قرن په سر کښې ابن باجه (١١٣٨ م) په اندلس کښې دموسيقۍ ستر عالم تیر شوی دی ده په مغرب کښې هغه مقام درلود چه په مشرق کښې فارابي درلود ابن باجه دارسطو په السماع الطبيعي، شرح ليکلې ده. دغه شان په اندلس کښې ابن سبعين د (الادوار المنسوب) کتاب او ابن الحدادد (تعليم الموسيقى) او ابو الصلت امية د (رسالة في الموسيقى) کتابونه ليکلي دي.

---

(١) تمع ص ٢٥٣

(٢) اخوان الصفا لسم قرن په پای کښې ديوی علمي دلې نوم دی چه په بصره کښې تشکيل شوی وو

(٣) تمع ص ٢٦٠

(٤) تمع ص ٢٢٩

دغه وخت په عراق کښې ابن النقاش او ابو الحکم الباهلي دموسيقی ستر پوهان وو ( ١ )

ابو نصر اسعد دمشقي ، کمال الدين بن منعه موصلي هم په موسيقي کښې پوره مهارت درلوداو ابو نصر د (رسالة الادوار) ليکونکی ؤ .

عبداللطيف البغدادي (١٢٣٢م) د (کتاب السماع ) ليکونکی گڼل کيږي .

مفتي عبدالرحمن بن ابراهيم (١٢٩١م) د (کشف القناع وحل السماع ، په نامه يو کتاب تاليف کړی دی .

محمد بن اسحق د موسيقي په علم کښې يو جامع کتاب ليکلی دی .

ابن رشد مشهور اندلسي فيلسوف د (شرح الموسيقي) په نامه يو کتاب ليکلی دی او ځينې وائي چه ده د ارسطو د (السماع الطبيعي ) شرح هم کړی ده (٢) .

ابو بکر ابن عربي داشبيلي قاضي هم (١١٥١ع) د موسيقي په باب ليکنې کړي دي . او د موسيقي ملګر تيائي کړی ده .

اعلم الدين قيصر مصري هم د موسيقي ښه عالم او ماهر ؤ. احمد بن محمد الاشبيلي (١٢٥٣ع) د (کتاب السماع واحکامه) رساله ليکلې وه.( ٣ )

ابن اثير او ابن طبري هم د موسيقي په برخه کښې څه ليکنې کړي دي دغه شان ابن خلدون او ابن خلکان هم د موسيقي په تاريخ کښې ځينې ليکنې لري. د ابن خلکان اثر د موسيقي په تاريخ کښې ښه معلومات ور کوي. ابن ابي اصيبعه( ١٢٧ م ) او ابن سعيد المغربي هم د موسيقي مؤرخين

---

(١) تمع ص ٢٣٧

(٢) تمع ص ٢٦٥

(٣) تمع ص ٢٣٠

دی.او مهری عالم د(اخبار العلماء الموسیقی) په نامه.یو کتاب لیکلی دی (١)
دجرجی زیدان داسلام دتمدن تاریخ هم د عرب.و په موسیقی ډیره رڼا
اچولی ده او اسلامی دایرة المعارف هم په دغه باره کښې څه لیکلی دی .
ابن القفطی مصری (١٢٤٨م) د موسیقی دپوهاو په باره کښې و او ی
ماخذ گڼل کیږی .
المقری د موسیقی په تاریخ کښې د(نفح الطیب) په نامه .و اثر لری .
نصیر الدین طوسی (١٢٧٣م) دموسیقی .و ستر .و هاند و . ده د موسیقی
په علم کښې یو مرساله لیکلی ده چه یوه نسخه ی دپاریس په (ملیه) کتابخانه
کښې شته.طوسی د.و قسم فلوت راویستونکی هم .ولی چه(مهتر دودوک)
نومیده ، مجبنی کسا .و ( کنز الحنف)هم ده ته منسوب کړ ی دی .
حاجی خلیفه او قطب الدین شیرازی (١٣١٠م) د موسیقی په پوها .و
کښې حسابیږی . شیرازی د(درة التاج)په نامه .و کتاب لری چه دبرطانیی په
موزیم کښې شته او .و باوری کتاب دی .
په الف لیلة ولیلة کښې هم دموسیقی خبری شته دی. دمرنة النغمات
الثمان په نامه یو کتاب په مادرید کښې لیدل شوی دی. دمحمد مراد .و ه
غوره مرساله دبرېتانیې په موزه کښې شته دی .
د(صفاء الاوقات فی علم النغمات ) کتاب درویش محمد لیکلی او په
قاهره کښې (په ١٩١٠م) کال چاپ شوی دی.
(تاریخ الموسیقی العربی کتاب دجارج فارمر اثر او یو مهم کتاب
دی چه زموږ .و ستر ماخذ دی.دا کتاب دکور حسین نصار په عربی
ترجمه کړ ی او په (١٩٥٦ع ) کال په قاهره کښې چاپ شوی دی
مولا نامبار کشاه د صفی الدین د کتاب شرح لیکلی ده .

---

(١) معجم ص ٢٦٣

# هندي موسيقي

دهنددخلکو دعوه داده چه موسيقي د کاينانو خالق ( بر هما)پيدا کړی ده او بيا دافغانستان په لار ايران او يونان‌ته تللی ده ، ځينی وائي چه موسيقي دمهاديوجي او کرشن‌جي‌راويستون او ايجاد دی (١)

موسيقي په‌هند کښې له‌پخوانی‌زمانې‌ څخه‌دتبرک‌اوپاکۍ‌مقام درلود اودعبادت او نما نځنی وسيله وه دغه عقيده‌او گر و هه او س هم شته او هلته موسيقي دمذهب يو جز ګڼل کيبږی .

دهندي‌موسيقي‌تاريخ‌په‌ښکاره‌ډول‌له‌بودائي‌زمانی‌څخه‌شروع کيبږی‌تردغه پخوا په‌ويد يائي زمانه کښې‌هم‌موسيقي‌خپلې‌لوړ‌ې‌نې‌دورې‌تيری کړی دی ،مګر دغه دوره داقغاني او هندي آرينوشريکه دوره ګڼل کيبږی . وائي چه دموسيقي فن په‌هند کښې د( موريه) کورنۍ راويستلی او دغه ښکلی فن ددوی دزياراوپام په‌وجه‌ذهندپه‌ځمکه کښې‌خپورشوی دی(٢)

دانګر يزي‌ليکوالو په نظر يو په مو سيقي باند ی لو مړ ی کتاب (پاني نی)نومی‌ستر عالم‌ليکلی دی . دی‌داسکندر همز مانه (٤٠٠ق م ) او داتک دسيمي او سيدونکی‌ؤ ، نژدی دوه‌زره کا له پخوا په راملين او مهابارت کښې چه دهندي ارينو دوه مهم کتابونه دی هم د مو سيقي بيان راغلی (٣) . د هند دموسيقي په فن کښې تر ميلاد وروسته لومړی کتاب په دريم قرن کښې(دناتياشاستر)په نامه‌د(باهراموتی)له‌خواليکل شوی‌دی. بيا‌په‌دولسم‌قرن کښې(راګ‌ترنګني) نومی کتاب‌په‌دغه‌فن کښې

---

(١)دهند دآجکل مجله(١٩٥٦ع)داګست ګڼه .

(٢)دثقافة الهند مجله .

(٣)دآجکل مجله ص ١٣ـ١٤

تر ټولو مشهور اثر گڼل کیږی . په دیارلسم قرن کښې د پنډت سارنګدیود (سنګیت رتنا کر) نومی کتاب ښه شهرت لری په دغه قرن کښې یو بل کتاب د (ګیتا ګوندا) په نامه یادیږی .

دهند په زړو کتابونو کښې یو کتاب (بریهاددیزی) نومیږی چه د (ماتنګ) نومی پوهاند تالیف دی . په دې کتاب کښې دغه اته راګونه راغلی دی :(ساکاراګ، کاکوبها، هارمانا ، (١) پاتچاماروپا ، ساتهارتیا ، ګاندهارا، (٢) پاتچاماوشاها، کایسیکا) یو بل کتاب (اسنګیت مکارندا ) په نامه یادیږی .

هندی موسیقی دبودا په زمانه کښې او بیا په پنځم عیسوی قرن کښې یو اصولی شکل موندلی دی چه بیان ئې په (پنج تنترا) کښې موندل کیږی .

دهندپوهان دهند موسیقی په او وسورونو اوتالونو ویشی چه په هندی کښې ورته (سپتك) وائی. دغه سورونه دځینو ساکښو دنومونو نمایندګی کوی او په دې ډول دی : سرج ( دتاوس آواز) رکهب ګندهار ، د (ورغومی آواز) مدهم( دزانی آواز) ، پنجم (دکویله آواز) د هیوت (دچیندخی آواز)، نکهارد (پیل آواز) اوپه سپك ډول (ساری، ګا، ما، پا، دها، نی) ویل کیږی په هند کښې دموسیقی دپوهانو دپاره پنځه درجی تاکل شوی دی چه نومونه ئې دادی:

(١-پنډت، ٢ ګنی، ٣- ګندهرب، ٤ ګاین، ٥-نائیك). دنائك درجه ترټولو لوړه ده اوهغه چاته وایه شی چه د موسیقی په علم او عمل دواړو کښې بی مثله

---

(١) دپښتون زغ مجله دهندی مجلو په حواله .

(٢) ګندهارا دګندهارا د ولایت راګ معلو میږی .

اوبې جوړې وې.دغه کلمه په پښتو کښې دبادار اومشر په معنې موجوده ده لکه چه وائي فلانی زمانایك دی.

په اسلامي دوره کښې هم د هند موسیقي ډيره وده او ترقي وکړه او اسلامي پاچاهانو ددې فن په روز لو کښې لویه برخه واخسته ، عالما نو پکښې کتابونه ولیکل او صوفیانو اوولیانو پکښې دخدای د پیژندنې او نماځنې نوبتونه و غبزول .په صوفیانو کښې قطب الدین بختیار کاکی، شیخ معین الدین چشتي او نظا م الدین اولیا په هند کښې د صوفیا نه موسیقي په رواج کښې ډيره برخه لري.ددوی په طریقه کښې موسیقي دزړه دپا کوو اوصفائي لویه وسیله ده. شیخ نظام الدین بدایوني وائي چه ما په یوه خانقاه کښې قطب الدین ولیدچه دساز په وخت کښې په مستئ راغی اوبې هوشه شو (۱)دهند په اسلامي پاچاهانو کښې بهأ ا لد ین بلبن او کیقباد دمو سیقی ډيره پالـنه کو له ، جلال الدین خلجي دساز او موسیقي سره زیاته مینه لرله، دده په دربار کښې ډيرسندرغاړې اوسرود ګر ر و ز ل شوی دی امیرخسرو وائي چه موسیقي دده ساوه او یو ساعت به بې ساز نه تېریده،علاؤالدین خلجي د موسیقي هنر ډيرې لوړې درجې ته رسولی ؤ (۲)

امیر خسرو دهلوی دده په ز مانه کښې دموسیقي اوشعریونومیالی، ستر پوهاند اولوی استاذ ؤ.وائی چه ده په ایرانی او هندي ساز کښې لوی لاس در لودنو ددواړوله یو ځای کولو شخه ئې نوی را ګونه راویستلی دی چه د(ایمن ترانه،قول،ساز ګری)په نوموياديږی.د(سیتار)درا ویستو

(۱)ثقافة الهند ،جون۱۹۵۳ع.
(۲)ثقا فة الهند.

نسبت‌هم‌وه ته شوی دی. هندی روایتونه وائی چه دستار اصل (وینا)ده. ویناسخته‌وه،تارونه‌ئی ډېروو نو امیرخسرو ورله تارونه کم کړل‌اودری تارهٔ یاسه تارئی ترې جوړ کړ (۱) مګر په هند کښی دا وسنوپوهانو لکه ډاکتر سیدرغیب حسین اوډاکتر محمد و حید نظریه داوه چه‌ستار دلسمی عیسوی،پیړی نه‌پخواپه‌منځنی‌ایشیا کښې موجودوواودامیرخسرو ایجاد نه‌دی(۲)

دهند دجونپور پاچاهانو دیوفن په حیث دموسیقی روزنه او پا لنه کړی ده.په‌تېره سلطان حسین شرقی(۹۰۵ ھ)د دې‌ډ ګریوسترپهلوان‌دی ۰ دی پخپله‌هم‌په موسیقی کښې‌ښه‌استادؤ اود(دهرپت) له نغمی څخه‌ئی د(خیال) نغمه راویستلی وه.سربیره پردې دنورو راګونو راویستونکی هم ګڼل کیږی.دمالوی ګجرات، اوبنګال اسلامی پاچاهان هم دموسیقی مینان او کلک‌ملګری وو.دابراهیم‌عادلشاه‌په‌وخت کښې‌په(بیجاپور) کښې کاله په کاله‌دموسیقی‌ډېوی بلې‌وی.د ګجرات سلطان‌مظفر(۹۲۳ھ) په‌موسیقی کښې زیات شهرت‌ا ومهارت‌درلود،دده دزمانې‌استادانودده په شاګردی فخر کاوه .دده‌زوی‌سلطان بها درهم په مو سیقی کښې دپوره پو هی خاوندؤ (۳)نایک‌بخشواونایک بیجو اونایک ګوپال دده ددربار مشهور موسیقا ران و و.

سلطا ن با ز بهـا د ر د ما لو ي پا چا د مو سیقی په فن کښې ښه ماهرؤ دده سازته بازخانی ویل کیده . دمغولی پاچاهانو در[?]بارونه هم دموسیقی‌له‌پوهانو،سندرغاړواوسرود ګرونه ډک‌وو.ملامبارک‌د اکبر باچا په دربار کښې دموسیقی یو کره عالم اوماهرؤ د ملا عبدالقادر بدایونی

(۱)ټنلؤالهندو۱۹۵۳ دمارچ ګڼه.

(۲)دهند آجکل‌مجله(۱۹۵٦ داګست ګڼه‌ص۵۸

(۳)مولانا آزاد،غبار خاطرص.۳۲-

غوندي یو دیندار عالم دیین په غبزولو کښې لوی لاس درلود . علامه سعداله اوشیخ معالی هم دموسیقی په ناز کیو ښه پوهیدل .

شیخ علاؤالدین، شیخ جمالی اوشیخ گدائی هم په دغه زمانه کښې دموسیقی پوهان وو ( ۱ )

ابوالفضل لیکی: چه اکبر باچا موسیقی ته په درنه ستر گه کوری . دده په دربار کښې ډیر سندرغاړی موجوددی. چه په ټولو کښې «تان سین» لوی استاذدی. دده اصل نوم (ترلوچن داس) او (تان سین) ئې لقب ؤ چه معنی ئی د ( نغمی او لحن شاه باز) یادساز پاچا کیږی. دی اصلاً هند وؤ مگروائې چه بیاوروسته مسلمان شوی ؤ. جهانگیر ، شاهجهان او اورنگ زیب هم دموسیقی مینان وو. دجهانگیر په وخت کښې دموسیقی زده کړه یو لازمی شی ؤ لال خان دشاه جهان ددربار تر ټولو مشهور سندر غاړی ؤ وائی دا کبر یرغلگر چه به له جگړو اولوټ نه راستانه شول نو خپله دمه به ئې په موسیقی برابروله . دمغولو ددربار سرداران لکه بیرم خان، عبدالرحیم خان خانان. زین خان کوکه میرزا غازی خان دا ټول دموسیقی شوقیان اوماهران وؤ (۲)

فقیرالله سیف خان دعالمگیر دزمانی یو امیر ؤ، په هندی موسیقی ښه پوهیده، ده د(راگ داپن) په نامه یو کتاب له سانسکرت څخه په پارسی ترجمه کړی ؤ(۳) شیر خان لودهی هم په دغه زمانه کښې دموسیقی یو مشهور پوهاند ؤ په ایرانی او هندی موسیقی باندی ئې یو لوی کتاب لیکلی دی او په (مرآة الخیال )

---

(۱) غبار خاطر ص۲۲٤

(۲) آجکل (۱۹۵٦ د اگست مجله ص۵۵.

(۳) غبار خاطر ص۱۰۳.

کبنيٖ هم‌د موسیقي یو نصل لري (۱)

شیخ عبدالواحد بلگرامي د شیرشاه د زماني یو لوی صوفي او د هندي موسیقي یو ستر عالم ؤ د هند مشهور مؤرخ محمد قاسم فرشته هم د موسیقي په باره کبني یو کتاب لیکلی ؤ. د مغولو د زماني نور مشهور سندر بوهان دا وسند رغاړی دادي : بابه رام داس چه د تان سین استاد ؤ، سورداس، چاندخان، سورج خان، دو اړه و رونه وو. وه به دورځي او بل به د شپي راگونه غږول. تان ترنگ خان د تان سین زوی ؤ. دغه ټول د اکبر پاچا په زمانه کبنيٖ و و میرزا عاقل، لال خان او خوشحال خان د شاه جهان د دربار سند غاړي وو. نعمت خان د پرمول خان زوري او فیروز خان هم د مغولو د وروستي وخت په سندر غاړو کبنيٖ حسابیږي (۲) تان رس هم د دغه وخت لوی موسیقار دی. رصل نوم ئي (قطب بخش) ؤ د (تان رس) خطاب د مغلو آخري پاچا د بهادر شاه ظفر ، ور کړي ؤ.

په هندوستان کبنيٖ موسیقي تل دیو فن په تو گه پالل شوي ده او په ډیره درنه ستر گه ورته کتل شوي دي او اوس هم کتل کیږي.

د لویو پاچاهانو په دربارونو سربیره د نوابانو او والیانو په دربارونو کبنيٖ هم د دي لطیف فن ډیره نمانځنه او پالنه شوېده. په دي سلسله کبنيٖ د حیپه ور، گوالیار، حیدر آباد، الور، جونپور، رامپور او ټونک ریاستونه په خاص ډول د یادوني وړدي. د بنگال، بهار او پنجاب په ریاستونو کبنيٖ هم د دي فن ته په لوړ نظر کتل شوي دي. وائي چه د جیپور په ریاست کبنيٖ یو نیم سل تنه سندر بول او سندر غاړي په ډیر عزت او درناوي اوسېدل. په دغه دربار کبنيٖ

(۱) غبار خاطر ص ۳۲۷

(۲) آجکل ـ اکست ۱۹۵٦ ص ۱۰٦

دموسیقی دفن نبه عالم (بهرام خان) نومېد. ده يوه ورځی دمهاراج په دربار کښې دتولوسندرپو هانو دوړا ندی وو ل : کوم وخت چه دخدای په دربار کښې دعلم ویش کیده نو هغه مال وازي زه حاضروم او په دغو کسانو کښې بل يو هم نه ؤ ( ۱ )

دهند وروستنی ستر خلک هم دموسیقی کلک ملګري وو . لکه چه مولانا ابو الکلام آزاد دموسیقی ډیر شوقمن ؤ . دی په خپل غبارخاطر کښې لیکي : چه ما په اولس کلنۍ کښې دستار په زده کړه لاس پوري کړ . مستیاخان نومی سندر پوهاندمی استادؤ . دی وائي ما دموسیقی شغل ددې دپاره کاوه چه دطبیعت برابری او دفکر نرمې پی له مو سیقی څخه نشی حا صلیدای . مو لانا (دمعارف النغمات) په نامه یو کتاب هم لیکلی او چاپ شوی دی (۲)

په ګاند هی باندی هم د موسیقی اثرپروت ؤ او له موسیقی سره ئې مینه لرله . ده ویل چه یوه تولنه د یوماهر او پوه سندر غاړي نه په غیرژوندنشی کولای .

ټیګو ر خو موسیقی بیخی یو ه روحی غذ ا بلله . دی په هند کښې د موسیقی یو ز بر دست پا لونکی او روزو نکی ګڼل کیږي . ده په ( شانتی نیکتیان ) کښې دنڅا ، موسیقی اوشعر درې واړه پیغلی په ډیر نبه شا ن سینګار کړ ی او پسو للی دی . ټیګور دمیوزیک په تاریخ کښې یو کتاب هم لیکلی د ی ( ۳ ) په مو جو د ه و خت کښې

---

(۱) آجکل ـ اګست ۱۹۵٦ ص ۱۰٦

(۲) غبارخاطر ص ۲۰۷

(۳) آجکل ـ اګست ۱۹۵٦ ـ ص ـ ٤ ۳

دهندمشهور سندرغاړی دادی .

پنډت اونکار ناته تا کر، راوی شنکر، استادعلاؤالدین، استادحافظعلی خان ولایت حسین خان، بړه غلام علی خان او ولا یت علی خان او نور .اوپه ښځو کښې رسولن بهائی ،میرابهائی،لتا،ثریا،شمشاد زیات نوم اوشهرت لری. په فلمی دنیا کښې دسهګل خوزی نغمی د کشمیر او پنجاب له سندو نو سره یوځای په هند کښې وبهیدلی . دطلعت محمود آهنګو نوهم دزړونو پرد ې وخو ځولی . ددوی خوږ و نغمو ، سوزنا کو آ هنګو نو مستو تالونو ، پستو غاړو د هند تا ووسان هم خپلی نڅا ته پر ګډا را وستل. د هند دسناسر غاړو پښتو خوږو سندروته چه سړی وګوری نوخیا ل کوی چه ددوی حنجرې لهوریښمو جوړی شوی دی ولی چه د آواز په لبز فشار لګه دباجی پردې کښته پورته کیږی لنډه داچه اوس په هند کښې دموسیقی دنیا ډیره رنګینه او ښایسته شوی ده او ددی فن در وز نی دپاره اکاډمی اولوی ښوونځی جوړ شوی دی .

دهندی سازپه زړو ا ل کښې دغه وروسته نومونه راوړل شوی دی : دند هو یی ، ا رمبرا ناند ، وینا ، بجولا ، وان کر کری ، بکورا ، تنارا نا دی (۱) تېوا ،دندنا .

دبا نسر ی ، ډو ل ،اوطبل نومونه هم پکښې راغلی دی

دا کبربا چاپه نغاره خانه کښې دغه ا لې موجودی وی :ـ

کر ګا ، نغاره ،ډول، سورنی، تورم، کرنا ،شر نکها اوجها نجه دهندی سازاوسنی مشهوری ا لی دادی:سار نګی،دلربا، تبله،سرود،مردنګ پکها و ج،تانپوره،وچتروینه او نور .

---

(۱) آجکل اګست ۱۹٥٦ ع،ص ٤۱ .

# اروپائی موسیقی

دنړی د ډیر پخوانی مدنیتونـه توِل په ختیځ کښې تېرشوی دی لکه دچین‌مدنیت ، دباختر او آموډغاړو مدنیت ، داند و س مدنیت د مصر یادنیل‌دغاړې‌مدنیت،دعراق یاددجلی اوفرات دځنډو مدنیت. هر کله چه موسیقی دیوقوم دتهذیب اوتمدن یوغوره‌توکی دی. په‌دی‌لحاظ ویلای شو چه دختیځ موسیقی‌به هم‌له لویدیځ څخه پخوانی‌وی مګرور وسته ځرنګه‌چه غرب دعلم اوتمدن پـه‌ډګر کښې له شرق نه‌ډیرورا ندی‌شو، دغسی دموسیقی په میدان کښې هم زیات‌پرمخ ولاړ ځکه غواړو چه‌په لنډه‌ول ورته څه ناڅه اشاره و کړو .

وائې چه پـه ارو پـا کښې موسیقي له دولسم قرن نه ورروسته یوسم مدنی‌رنګ موندلی‌دی اودموسیقی آ لی په نوی رنګ‌را وتلی دی. دارو پاپه سازونو کښې‌ارغنون(ار ګن ) زوړاو پخوانی سازدی ارغنون په‌فرانسوی کښې( اور ګ )، په‌لاتینی کښې(ار ګینوم) بولی. دې آلی‌ته لو یه ار مونیه هم وائې . دغی آ لې په غرب کښې ډیر اهمیت درلوداو دارمونیم نمونه‌اومثال ګڼل کیږي. دځینو پوهانو په‌نظر یه‌دغې آ لې راویستو نکی افلا طون ګڼل شوی دی . داروپادر نسانـس پـه دوره کښې بربت یا ګیتار یوه خوږه آ له وه مګر دوایلن کورنی چه منځ ته‌را غله‌نودبربت بازارئې سوړ کړ . وایلن دارو پا ډیر مشهورسازدی. وائی چه‌لومړی‌وایلن‌په۱٤٦۷ع کاله کښې‌د ( کاسپریتپن‌برو کر) له‌خوا جوړ شوی دی. دی دایتالیې په(تیرول) کښې اوسیده اودموراوپلار لـه پلوه‌جرمنی ؤ(۱) له دغه وخت نه ورروسته وایلن ښه تـرقی‌و کړه اوخپل

(۱) دپښتون ژغ مجله ددلوی ګڼه ۱۳۲٥ .

کمال ته ورسید . په اروپا کښې عصري اوژونديءِ موسيقى په او لسم قرن کښې منځ ته راغلىده ،وائي چه دغه وخت دايتاليي په (فلورانس ) کښې لومړنۍ (اوپرا)(۱) جوړه شوي ده.ارکسترا هم دغه وخت منځ ته راغله . په فرانسه کښې دد بارلسم لوئې پهوخت کښې لمړىءِ لويه ارکسترا ميدان ته راوتلي ده .مګرارو پائې مو سيقى زياته ودهاوترقى په-۱۹.اوشلم قرن کښې و کړه اوله پخواځخه يىخپل رنګ واړاوه . ددې ترقىءِ علتونهد پوهانوپه نظر کښې دوهشيان دي .يو پهاروپا کښې دملى حس قوي کيدل دي اوبل دحقيقت خوښولو دحس پيدا کيدلدي .

پهشلم قرن کښې( کورس ،بالت)زياتهودهو کړهاو روسيه په بالت (۲) کښې ډيرهوړاندىولاړه.

اروپائې موسيقىدوه جلاطرزونه لري چهيوه ته(آرموني)اوبل ته (کنترپوان) وائي.په آرمونيک کښې تال ګردغږونوجوړښتاوتر کيب ته پام کوي او په ( کنترپوان ) کښې دغږونو بهير او پرله پسې والى په نظر کښى نيسى .

آرموني دغږونود نښلو لوپوهنه او (کنترپوان) د ملودى (نغمى) دجوړښت پوهنهده.د-اروپائى موسيقىپوهان آرمونىليارې تهعمودي اودغهبلىتهافقى(اړخيز)ډول وائى. په موجوده وخت کښېداروپا اوچت سندر پوهان د آر موني ډولنهخوښوىاو ( کنترپوان)ته زياتهځه کوي(۳)داروپاسندر پوهان دموسيقى آلى پردرى ډولوويشى:

---

(۱)او پرا پهنغمو اوآهنګونو کښې ديوى قصىدبيانو لو نومدىچهډيرمهارت غواړي.
(۲)بالت هم دغه ډول شى دى .
(۳)دتهران دمو سيقىمجلهد۱۳۳۷کــال۲۱ګڼهص۳۵

١-پوک وهونکي یا پوکي والي آلي لکه: فلوت، ترومپت، کلارنت هارن، تورم، بیگل، توله او شپیلۍ هم په دغه قسم کښې داخلیږي.
٢-تاریزې آلي چه د کوتو یا شاهباز یالیند کۍ په واسطه ترنګول کیږي لکه: وایلن، او نور په اروپائي آلو کښې، رباب، تنبور، دمبوره، چنګ سرینده، او غژ که په شرقي آلو کښې.
٣-درېیم ډونکي آلي چه په در بولو او وهلو سره آواز ور کوي لکه: تامبورین او هر قسم ډولونه په غربي آلو کښې. ډول، نغاره، تمبل، ډولکۍ، ډمامه، پیانو په شرقي آلو کښې. ماندولین او اکوردین هم دغربي ساز مشهوري آلي دي. په ننني ارکسترا کښې(١) دغه ټولي آلي استعمالیږي چه سمفوني ارکسترا کښې له (٦٠) نه تر (١٠٠) پوري سندر غاړي کډه ون کوي. او اوس خو په کښې تر دري سوو تنو پوري هم برخه اخلي.
په اروپا کښې دلر کي پوک و هونکي آلې زیاتي یوه ژ بېړ او څینی ئی دوه ژ بېړ لري: فلوت یوه داسي آله ده چه ژ بېړ نه لري(٢) سربېره پر دغو نورې هم راز راز آلې جوړي شوي دي چه سوو نو ته رسیږي.
د اروپائي موسیقي په ترقۍ او پرمخ تګ کښې دغرب دهر مملکت پوهانو برخه اخستي ده مګر جرمني سندر پوهان پکښې لوی لاس لري. باخ (١٧٥٠ ع)، بتهوفن (١٨٢٦ ع)، هایډن (١٨٠٩)، واګنر (١٨٨٣ ع) دغه څلور واړه جرمنیان دي(٣) او په اتلسم او نولسم قرن کښې دغربي موسیقۍ ډیر پیاوړي استادان دي وائي چه هایډن دارکستر اپلاردی ده میدان ته راوویستله،

---

(١) ارکستر ایوناني لفظ دی چه د سازندګانو یوی ګڼي د لی ته وائي چه هر راز آلي ورسره وي او د یوه کاند کټور (سندرمیر) له خوا اداره کیږي.
(٢) د آریانا دایرة المعارف دوهم ټوک ص ٢١٢.
(٣) د پښتون ږغ مجله د فرخ افندي لیکنه

بتهوفن‌ښه ترقی ورکړه اوداکنو یبخی معراج‌ته‌ورسوله (١)
دنولسمی پیړۍ په‌سر کښې (ویانا) داروپا دموسیقی مرکزو اودموسیقی لویوعالمانودغلته‌دخپل فن او هنرشاهکاری ښودلی. لکه موزارت او شوبرت . موزارت(١٧٩١ ع)دموسیقی یوستراتل اونابغه و. ده په خپل ٣٥ کاله عمر کښې شپږسوه‌نوةونه‌او آهنګونه یادګار پری ایښی‌دی .
شوبرت (١٨٢٨ع)داستریادستروا کمنی‌په کوچنیو سندرغاړو کښې شامل وواوئی چه لـه ده‌نه‌یوازی کمپوزونه یادګـار پاتی دی .
دفرانسی په‌سندر غاړو کښې برلیوز(١٨٦٩ع)دښه شهرت خاوند اودار لستر الوی‌متخصص‌دی.
مګر دشلم قرن په سر کښې کلوددیبوسی« ١٩١٨ع» دعصری موسیقی پیشوا ګڼل کیږی .
دشلم‌قرن‌په‌اوله برخه کښې موریس‌رافل ، البرت اوزل،میل‌هادو، هم دموسیقی‌په‌لوړتیا کښې‌لوی لاس‌لری.
دانګستان موسیقی په شلم قرن کښې‌ښه‌وده‌و کړه‌دغلته سیسل‌شارپ (١٩٢٤ع)،جان‌ایرلنید،آرنولدبـاکس،فرانـګ برج ، آرتوبلس،دشلمی پیړۍ دلومړی‌برخی مشهور سندر پـوهـان اوتـالګران دی.
دهسپانیی موسیقی په شلم قرن کښی دملیت په رنګ کښی رنګ شوه‌او په دغه‌برخه کښې ئی ښه پرمختګ‌و کړ.
په ایتالیه کښی هم نومیالی‌سندر پوهان تیرشوی‌دی‌لکه :روزینی ، پوچینی (١٩٢١ع) وردی ( ١٩٠١ع ) او نور،په‌روسیه کښی‌موسیقی ، ارت ، نڅا او نورو لطیفه فنونو ته‌زیاته پاملرنه کیږی اودی‌فن‌دپاره زیات ښوونځی جوړ شوی دی،په ټوله روسیه کښی دموسیقی

---

(١) آریانادایرة‌المعارف دوهم‌ټوک‌ص٢١٢.

خاص ښوونځي تر(۲۰۰)زيات دي په لويو ښارونو کښي لکه مسکو، لیننگراد او تاشکند کښي د موسیقي دپاره عالي ښوونځي جوړ شوي دي . دشور وي روسي نومیالي سندر غاړي او تالگران دادي .

راهما ني نوف (۱۸۷۳ ع)،ستو کو فسکي ،میخایل گلینکا ، کور ساکوف(۱۹۰۸ ع)په تالگرانو کښي ښه شهرت لري.دروسي په سندرغاړو کښي چیکوفسکي (۱۸۹۳ ع) دلوی نوم خاوند دی .ده ته دا کسفورډ دپوهنتون له خوا دموسیقي دکتورا هم ور کړ شوي وه. دي دروسیي دموسیقي ستوری گڼل کیږي . دروسي په ورو ستنو سندرغاړو کښي(شوستا کوویچ خا چو تر یا ن ، سر جیت پر و کفیف ) زیا ت شهرت لري . سر جیت داوومی سمفوني په جوړښت کښي لوی نوم وویست او دلینن جایزه یې واخستله.

دامریکي موسیقي کوم زوړ او لر غو ني تاریخ نه لري. بلکه دار وپا دهجر تیانو په واسطه یي کښي د غربي موسیقي رنگ ننوتلي دي مگر اوس یي ښه ترقي کړي ده په امریکه کښي د( جاز)موسیقي زیات شهرت لري. په(جاز) کښي دپو کي والو آ لو استعمال زیات او دتاریزولږدي . دغه ډول سازدهرځای په خلکو اثر کوي.په شلمه پیړۍ کښي دامریکي نومیا لي سندر پوهان او تالگر(هانري هاد لي) دي،لیو نارد بر نشاین په دیرش کلنۍ دامریکي په موسیقي کښي لوي نوم وگاټه او د پیانو لوي استاد شو ده د (هالیوود)دپاره دموسیقي ډیري غوره پارچي تیاري کړي دي. په امر یکه کښي اوس نن دی (۵۰۰) ار کسترا وي دموسیقي نوبتونه غږوي او دري ملیونه شا گردان دموسیقي له زده کړي څخه گټه اخلي .

دغرب دموسیقي قصه ډیره اوږده او په زړه پوري ده. په موجوده وخت کښي

غربی نړی د موسیقی او موزیک په ډگر کښې ډیره پرمخ تللی ده . او دفن کاری په لحاظ خپل کمال لوړی پوړی ته رسیدلی ده. انسانی دماغ دغربی دنیا دموسیقی له عظمت او لوئی نه خامخا ضرور متأثر کیږی. په غربی موسیقی کښی په سوو نو لحنونه او آهنگونه یاد سوراو تال تو کی په ډیر ژور اودقیق ډول له یو بل سره جوړه شوی او پیوست شوی دی. او په دې لحاظ په موجوده وخت کښی دغرب موزیك دانسانی فکر د ناز کیو اوشاهکاریو یوه ستره نمونه گڼل کیږی .



# پښتني موسيقي

افغانستان دآسيا په زړه کښې پروت يو داسې ملک دی چه له لرغونو زمانو څخه ئې دشرق اوغرب ترمنځ دنږدې والي او ارتباط وظيفه پرځای کړې ده په دې خاوره کښې دهند ، چين ، يونان اومصر زاړه مدنيتو نه سره غاړه غړي شوی دي . پخپله په دې خاوره کښې يعنې د آمو او اندوس په بېنو غاړو ډېر روښانه مدنيتونه منځ ته راغلي دي، لرغوني افغانستان په هرلحاظ دزړو مدنيتو نو زانګوده . باختراو بلخ ياد آمو(اکسوس) غاړې دهند کش لمنې ، د سپين غر ه او کسي غره ورشو ګانې ، داندوس غاړې څنډې ،دشعر ، مو سيقي ، رسامۍاو مصورۍ آرټ او صنعت او الهامي سرودونو بختورې ځمکې دي،د آرينودوه لرغوني مقدس کتابونه (اوستا ، ريګويدا)په همدې خاوره کښې دپوهو او هوښيارو ايشيا يانو له خواجوړ شوي دي،له دې خاورې نه دعلم ، پوهې ،آرټ او هنر بهيرونه هرې خواته تللي دي ډېرو ګاونډو اولسونو دبلخ او باختر له اورغالو څخه داور سکروټې وړې او خپل ساړه نغری ئې پرې تاوده کړ ي دي . زاړه آثار اودنړۍ پوهان ددې خبرو ښکاره شاهدان دي .مونږ دتهذيب ، کلچر او تمدن له نورو برخو څخه تيرېږو او يواځې دزاړه افغانستان د موسيقي په زاړه تار يخ ، زړو آ لو اونورو شيانو لږه ډېره رڼا اچوو او دخپل وس او معلوماتو په اندازه ددې ناوی له مخه پلوړی کوو .

**لرغوني موسيقي:**

آ ريائي قومونو مـو سيقي يو مبارک او پـا ک کـار ګـانه ، اود مو سيقي زده کړه ئې پرخپل بال بچ لازمه کړې وه . موسيقي دآريه ؤ

په مذهبي‌او اجتماعي ټولنو کښې پوره ننوتی وه او د دوی دژوندانه یومهم عنصروُ . اریهٔ یوازې دموسیقی په تبرک‌عقیده‌نه درلوده‌بلکه دموسیقی تاثیر اواغیزی ته‌یې‌هم تسلیم وو .

د اریائی‌موسیقی ابتدا د(سام‌وید) له وخته‌اتکل کیږی، سام‌وید‌هغو ویدی شعرونومتن‌دی چه دسوزاوتال‌او دموسیقی په آهنگ برابرویلی شوی دی . تردغه کتاب د مخه په ریگوید کښې هم ځینې شعرونه ویل شوی دی . مګر دغه شعرو نه‌دآ هنګ په پوره قالب کښې‌نه‌وولویدلی نوځکه دغه دوره ډیره ابتدائی دوره ګڼل کیږی .

دسام ویددوره دویدی موسیقی ښکاره‌اوځر ګنده دوره ده‌دسام‌وید یوه برخه دتمنځ او عبادت سندری دی‌اوځلور برخې‌ئې د موسیقی مواد دی په‌دې برخه کښې د ځنګل‌سندری ، دکلوسندری‌او خیا لی سندری راغلی‌دی . کوم وخت‌چه په آر ؤیه‌د( سوما )له بوټی ځنځه‌اوبه‌ویستلی اوخوږ مشروب‌به ئې‌ځنی جوړاوه نودریګوید سندری به ئې په‌خوا‌ږه غږ اوترنم ویلی(۱) اریائی موسیقی په افغانستان کښې دکوشانیانوپه دوره کښې ډیر اهمیت درلود او په تیزی مخ په وړاندې روا نه‌وه . ددوی په دربار کښې د دغه فن ښه استادان موجود وو .

والی چه دکنشکا په دربار کښې یوه سندر غاړی او غږ ندوی داسی سحر کاری کوله ، چه خلکو به‌ورته خپل کارونه په ځای پرېښودل‌او دده سازاو آوازته‌به‌رازغلېدل(۲) دچین‌نومیالی‌سیلا نی(هیوان تسانګ) په دغه دوره کښې دننګر‌ هار دموسیقی ډیره ستاینه کړی‌ده .

---

(۱) له هندی منابعو څخه

(۲) دپښتون ږغ مجله دښاغلی کهزاد مقاله

وائی چه آریائي موسیقي دهندخاوري تهله( آریانا)څخه‌تللې‌ده . په خپله دهندپوهانو هم داخبره مني چه دشمالي هند دموسیقي سیستم‌له آریانا څخه اخستل‌شوی‌دی . په هند کښې‌د ( سـا کـارا گ ) دساکـا دخلکو نغمه‌وچه د شمالي خوا آریه‌ؤ یوه مشهووه څانګه وه .

**دساز آ لی:**

دافغانستان دموسیقي د آلـو په‌باب پوره څیړنه لانه ده شوې مګر لږ و ډېر معلومات چه لاس ته راغلي دي په وروسته کر شو کښې بیانیږي . د ډ نمارک یوعلمي‌هئیت چه‌څو کاله پخوائې په افغانستان کښې علمي څیړنه کړې‌ده وائي : چه‌پنځۀ زره کاله‌پخوادافغانستان‌په مرکزي‌غرونو کښې یو راز هارپ یعني چنګ موجودؤ چه‌دسومر یانو هارپ‌ته ډېر ورته‌ؤ . ددغه هیئت‌یوغړی( توماس‌الواد)وائي چه‌ددغه مشابهت په‌وجه داخبره‌په‌ښه‌شـان زړه‌ته‌پرېوزي چـه سومر یانو له‌شرق څخه د غرب پرخوا‌یعنې‌دفرات او دجلې‌غـاړو ته هجرت کـړی‌دی . ددی خبرې بـل سند دبلمیانو هغه دوه زره کلن تصویر دی چه دوه سرود ګرې پیغلې دچنګ دغبز ولـوپـه حال کښې ښیی‌اودواړو وربـانـدی خـپلې‌چنګې ګـوتـی ایـښـی دی .

دافغانستان دزړو آلوبل سند هغه دوه انځو رونه دي چه دننګر هار دهډې له سمڅو راوتلی دي او د کنشکا په زمانه یعنې‌په‌اوله یادو همه عیسوی پیړۍ پورې اړه لري . دغه دواړه انځوونه دفرانسی د ګیمی په موزیم کښې خوندي دی‌اوعکسونه ئې د کابل په‌مجلو کښې خپاره شوی‌دي . په دغو انځورونو کښې دسرود ګرویوه ډله دساز په‌حال کښې ښکاري‌اودساز‌ځینی زړې آلې‌لکه:رباب ډول ، نوله ، تمبل( اوچنګ)

هم‌ورسره لیدل کیږي.دغه انځوردیوې ورې ار کسترا په‌شکل ږیښي(۱) دپیښور په‌موزیم کښې هم‌د گند هارا په‌زاړه آرت پورې‌مربوط داسې ډېرډېرین انځورونه شته دی چه‌دساز دغه‌ډول پښتني آریائي آلې لکه (رباب ) ډول، توله، تمبل) پکښې لیدل کیږي.

آریانا دایرة المعارف‌لیکي:دبامیانواونوروځایوله تصویرونو څخه معلو میږي چه موسیقي په‌افغانستان کښې له‌څو زرو کالوڅخه‌راپدې‌خوا رواج‌درلود دساز په آلو کښې(تنبور،رباب،سرینده)دغه‌شان(چنگ)ددې خاورې‌خاصې آلې گڼل کیږي‌ولې چه‌پخوادغه‌راز آلې په‌نورو گاونډیو ملکو نو کښې نه وې ( ۲ )

دخوشحال‌خټک‌په‌وخت‌په‌افغانستان کښې( بربت موسیقار،چنگ ،رباب چارتار،سورنی،مزمار)موجود و ولکه چه‌وائي :

یادچنگ د مغني یاد مز مارد ی
شپه آواز که‌دبربت‌دموسیقار(۳)دی

هم‌وایه‌داستادجړاووښو آ وازوای
در باب که‌دچارتاریا دبل‌تارد ی

دمزارپه مو زیم کښې‌دساز درې‌پخوانۍ آلې‌شته چه‌یوه‌لرغونې غژ که،بله دمبوره‌ده چه‌دوتارئي بولي‌او دریم‌چنگ‌دی.

دمولاناجلاالدین بلخي(۶۰۰ھ)په‌اشعارو کښې‌د (شپیلۍ‌سورنی، ډول رباب ، تنبور ) نومونه راغلي دي .

ښاغلي گویاد ( ۱۳۲۲ش ) کال‌په پښتون‌ږغ کښې‌چنگ ،غژکه ، قانون ، دوتاردافغاني‌ساز آ لې‌بللي‌دی . په‌موجوده وخت‌په‌افغانستان‌او

---

(۱)دپښتون ږغ مجله دښاغلي کهزاد مقاله

(۲) دآریانا دایرة المعارف لومړی توك

(۳) موسیقا دیو مارغه نوم‌هم دی‌او دساز دیوې آلې نوم‌هم دی‌چه دنل‌له لویو وړو تو تو څخه جوړ یږي‌ښائي‌چه‌بین باجه‌وي

او پښتونخوا کښې دسازدغه وروسته آلې رواج دی:- رباب، تمبل ( چمبه ) توله ، شپیلۍ ، دروی ، چنګ ، سنتور ، غژ که هارمونیه ، تنبور ، دمبوره ، ډول ، ډولکۍ ، دمامه ، ستار ، سرینده ، بین باجه ، دوپړی ، سورنی - .

د دوتار ، سه‌تار ، چارتاراو پنج تار به نوموهم ځینې آلې شته دی.

مګر په نورو نومو نو هم یاد یېږي ، دغه آلې به وروسته په څه قدر تفصیل و ښودلې شي .



(۲) توله دنامېی اوزیږ ووی ، شپیلۍ دلرګی اودروی دنل اودور می‌وی!



# رباب

رباب دساز يوه مشهوره آله ده کله چه مونبز درباب نوم په خوله واخلو نو د پښتنو دلرغوني ساز اوسر ود، تنګ تکو ر ډیره زړه څیره ومخی ته و در یږي درباب نوم د پښتو نخو اله خاوری آب، هوا غرونو اوتړو، درواوشنيلو سره دومره آ شنا او په زړه پوری بریښي چه هیڅکله ئي زړه ته دپردی توب خیال او تصور هم لارنه مومی.

دسازد آلاتو اصلي اوسمه نیټه معلومول خویقینا ډیر گران او سخت کار دی خو سره ددی هم مونبږ د لاس ته راغلو معلوماتوله مخه غواړو چه درباب دتاریخچي په تارونو یو څه خوږې نغمی تاسي ته واوروو.

دهند دموسیقي پوهان وائی :چه دویدی ادب په کتابو نو کښي دساز دډیرو آلونو مو نه راغلی دی لکه وینا ، دندهوبی ، بالنسری (شپیلۍ)، ډول او نور .په دی آلو کښي (وینا) یو مشهور ساز دی وائی چه د وینا دغبږ ولو دپاره به پرلتۍ وهله کیده لکه اوس چه رباب ته دغه ډول پرلتۍ وهله کیږی.

په پخوانۍ زمانه کښي د(وینا) رواج ډیر عام ؤ ، تردی چه په پخوانی مصر او سومر کښي هم دغسی ساز وهل کیده. ددوهمی عیسوی پیړۍ په ډیر ینو نقشو کښي دوینا چترۍ ډولبه نمونې لیدل شوی دی .

دهند موسیقی دیوه پوهاند نظر یه داده چه رباب اوسرود له دغی وینانه راوتلی او جوړ شوی دی . مګر له نورو مطالعواو کتنو نه څرګند یږي چه رباب د پښتني ساز یوه پېره لرغونی آله ده او له هند او کوم بل ځای څخه ندی راغلی، کیدای شي چه دوینا سره تاریخي نژدیوالی اوورته والی ولری، په دې باره کښې پاخه سندونه دډېرود نقاشۍ اومصورۍ زړې نموني دي . دبت سازۍ دوه زړې نموني چه دننګر هار له هډې نه راوتلی دي اوپه دوهمي عیسوی پېړۍ پورې اړه لري په هغو کښې دساز ندګانو دیوی پوره ډلی څیرې اودساز ځینې آلی هم څرګندې شوی دی .
په دغو آلو کښې سربیره پرتمبل او شپیلۍ رباب هم رسم شوی دی دغه دوه پلرچی دپار یس په ګیمه نومې موزیم کښې پرتې او عکسونه ئې دښاغلی کهزاد په واسطه دپښتو ن زغ په مجله کښې خپاره شوی دی دپېښور په موزیم کښې هم دډېرو په توتو کښې درباب اوډول څیرې لیدل شوې دی هر کله چه دغه ډبرین تصویرونه او نقشونه دګند ها را دولایت زوړ او پخوانی آرت او صنعت ګڼل کیږي نوتاریخ ئې له دووزرو کالوڅخه هم اوړ ی نو ځکه مونږ رباب دپښتو نخوا دخاورې مال او صنعت بولو .

دساز کومی آلی چه دګند ها را دولایت دډېرو په نقاشیو کښې راوتلی دی ،هغه په یقیني ډول ددې خلورې او ددې ځمکی پیه اینبت دی .

بله خبر داده چه په خپله دهند اوسني لیکوال رباب اوسرود ته هندي سازنه وائی لکه چه په دې باره کښې ښاغلی نعیم کوثر دآجکل دمجلې دموسیقی په خاصه ګڼه کښې لیکلی دي (۱)

(۱) آجکل د ۱۹۵٦ کال د اګست ګڼه

سرود یو خوږ او خوندور سازدی چه داستاذ حافظ علی خان کورنی ته ئی نسبت کیږی . سرود په اصل کښې د کابل ساز دی ، هلته ورته رباب وائی او کور په کور استعمالیږی د حافظ علی خان نیکه په دغه آله کښې څه لاس ووهه او له رباب نه څه قدر په تارونو کښې زیات شو په کابل کښې دغو زانو له لرګی څخه واړه واړه ربابونه جوړیږی ، رباب د کابل یو ملی او خوږ سازدی.

ښاغلی نعیم کوثر ورپسی دحافظ علیخان قصه لیکی چه دی په قام ښنګش پښتون دی دده لوی نیکه غلام بندګی خان چه هندوستان ته به داسونو سودا ګری ته راته نو رباب ئې له ځان سره راووړ او بیائې په هند کښې دسرود په شکل واړاوه ، دده ځوی غلام علی خان په دی میدان کښې ډیر زغلو کړ اوس د ده نمسی استاذ حافظ علیخان په ټول هند کښې د سرود او رباب استاذ ګڼل کیږی اود ډیر قدر او عزت په سترګه ورته کتل کیږی . د آجکل دغه لیکنه په خپله ددی خبری ښکاره دلیل دی ، چه رباب او سرود دخپل فنکار سره له پښتو نخوا څخه هند ته تللی دی او پښتنو سرود ګړو له دغه پښتنی ساز سره دهند خاوره اشنا کړ یده .

د افغانستان آریانا دایرة المعارف په دي برخه کښې داسی لیکی : چه رباب ، سارینده ، ار مونیه د افغانستان دځمکی خاص آلات دی . ځکه چه په پخوا زما نو کښې په ګاونډ و ملکو نو کښې د د غو آلو نوم او نښان هم نه ؤ ، دغه دایرة المعارف ور پسی وائې : » دساز هغه آله چه په عربی کښې ورته رباب وائې د افغا نی رباب څخه جلا او بل شی دی ، په شکل ، غږ و لو اوتر نګهار کښې دیو بل سره ډیر

توپیر لري د پښتو ار ګسترا په رباب ، سرینده ی ، سورنۍ او ډول باندې شامله ده » زمونږ په فکر په پښتنی ار ګسترا کښې سربیره پر دغو آلو ، شپېلۍ ، تمبل ، ډولکی او بین هم شامیلدای شي .

رباب د پښتو یو ډېر خوږ ساز دی د پښتو په هره ډېره کښې د رباب او منګی غږ د یو بل ګلک او پاخه ملګري دي . د جنګ او جګړو په ډګر و نو کښې هم رباب له پښتنو سره خپله ملګر تیا نه شلوي د پښتنو اکثر خانان او مشران په رباب وهلو کښې ډېر غښتلي او پوره لاس لري .

د آدم خان د رباب قصې او س هم په هره ډېره کښې د خلکو ژوندي کولو لپاره د روح او سا کار ورکوي ، د ر خانۍ بوالۍ د آدم خان ښایست په ځان پسې نه وه لیونۍ کړې بلکه د آدم خان د خوندور رباب خوږو نغمو هم په کښې د مینې رسۍ اچولې وې .
د رباب د کلمې څیړنه :

ټول فارسي قاموسونه چه د رباب په کلمه راشي نو سرسري تیریږي او کوم تفصیل نه ور کوي .

فرهنګ نظام وائي : چه رباب عربي کلمه ده ، تار لرونکی ساز دی چه بل نوم ئې تنبور دی . منتخب او شمس اللغات وائي چه رباب د یو ساز نوم دی ،
هفت قلزم او برهان قاطع لیکي چه د تنبور په شان یو ساز دی ،
فیروز اللغات ورته عربي ساز وائي او یو قسم سارنګ ئې بولي بهار عجم او غیاث اللغات رباب د « رواوه » معرب بولي چه معنی ئې د غمجن آواز ویستونکی کیږي . هر کله چه رباب اصلاً نه عربي ساز و ، نه اردو و او نه فارسي و . نو ځکه د پردي مال په شان چا عربي ، چا معرب او چا څه او چا څه بللی دی حال دا دی چه رباب زمونږ په خیال پښتو نوم بریښي ځکه چه

آله اوساز پښتني دی نونوم ئې هم باید چه پښتووی.رباب.د (رپ) له ريښي ښخه راوتلیدی ، په رباب کی دتارو نواهتزاز اورپازیاته ده نوځکه درپ دآواز دتکرار ښخه په اصل کښې رپارپ بیا په مخفف صورت رپاپ اووروسته ورځني رباپ جوړ شوی دی.رپی،رپرپی له همدغی ریښی ښخه دبیرغ په معنی راځی . ولی چه هلته هم داهتزاز معنی موجوده ده.په رباب کښې دتارو نو،دتالو نود آهنګو نودسرو نواود آوازونو اهتزازډیر زیات دی، نوځکه ورته رباپ ویل شوی دی .لکه له دب ښخه چه دباب جوړیږی دغسی له رپ ښخه رباپ راتلای شی«ب،پ»تل په یو بل باندی اوړی لکه په گلاب او ګلاپ کښې،درباب دنامه په باره کښې یوه بله خبره هم شته هغه داده: داننداج فرهنګ د(ربابه) کلمه هم دیوساز نوم بولی او هم ئی دیوی ښایسته ښځی نامه ګڼی ، داهم ورپسی وایی چه ربابه د«رواوه»معربه کلمه ده دلته دسړی فکر ته یو نوی خیال راځی اوهغه دادی: کیدای شی چه له (ربابی) ښخه مطلب ( رودابه)وی.رودابه د کابل دپاچامهراب یوه ښکلی او ښایسته لوروه وائې چه زال ورباندی مین شواووائی تقریباً په زورئی و کړه چه بیا رستم ورځنی پیداشو، کهچیری مونږ رباب د کابل مالو بولو نو بیائې رو دابی یاربابی ته نسبت کول ګومان لوم د و مره نامناسب او ناموزون نه وی، رو دابه یار بابه ددغی ناخوښې ور کړې له کبله غمجنه وه.نودې دزړه دتسلی دپاره یوغمجن ساز راوو یست چه نوم ئې رباب شو.رودابه هم د کابل شهزاد ګی وه اورباب هم د کابل ساز دی نوددواړو نز د یو ا لی سره نژد ګي اوشرنه دی اورباب په دې حساب درودابې په غیږ کښې ښه اړخ لګولی شی ، ښائې چه دغه آله پخوانی وی یواځی نوم به ئی دودابی له زمانی ښخه وراوښته درباب په صورت اوښتی وی.په هرصورت دا نظریه خالي یوه فولکوری توجیه ده دمنلو او نه منلو لپاره ئې مونږ نوروپلټنو ته هم اړیو البته زمونږددی شیرنی ښخه دومره خبره زړه ته لاز مونډلی شی چه رباب پښتني سازدی او په نامه کښې ئې هم دپښتو رنګ،ریښه او بڼه ځان ځلوی

**شپیلۍ:**



دموسیقۍ د آلو اصلي
او پوره تاریخ معلومول
یو گران او مشکل کار
دی یو ائې دا تکل او
گومان له مخه هر چا په دغه
برخه کښې شه نه شه
ویلی دی. لدې کبله مونږ
د شپیلۍ د لو مړ ی
پیدا ینبت په باره کښې په
یقیني ډول څه نشو ویلای
خالي غواړو دخپلو لاس
ته راغلو معلو ما تو په
رڼا کښې یو ساعت تاسی ته دشپیلۍ په باره کښې دشپېلۍ خوږه نغمه وغږوو .

د موسقی د تاریخ په باب کښې هم ډېرې مختلفې نظریئې وجودی دی. په عمومي ډول هر څوك دا نظریه مني چه موسیقي د بشر له مدني تاریخ سره ملګری راغلی ده له چیری دچین سومریانو، مصر او اندلس د مد نیتو نو تاریخ پنځه شپږ وزرو کالو ته رسیږي نو د موسیقی تاریخ هم دغی نیټې ته ځان وررسولای شي .

هغه وخت چه آریایا نو لا دبلخ او باختر څخه په عمومي مهاجرت پیل نه ؤ کړی نو دغلته ئې دموزیك ابتدائی مرحلې تیرې کړی دی . کوم وخت چه دوی غرب او شرق ته په هجرت لاس پوری کړ نو خپله موسیقی ئې هم له ځانه سره یووړه او هلته ئې بیا نوی رنګ او شکل پیامو ند. پردې حساب گومان کیږ ی چه آریایائې موسیقي د بخدی او باختر له سیې په هنداو ایران کښې خپره شوې ده.

پخوانو آریایانو دموزیک دري قسمه آلی پیژندلی لکه تارلرونکې آلی ، یوك و هونکی آ لی اولا س وهونکي .

دیوك وهونکو آلو په سلسله کښې یو شپیلۍ ده چه مونږ پرې او س غږیږو . شپیلۍ دساز په تولو آلو کښې یو ساده او آسانه آله ده چه له دې کبله د شپیلۍ دزېږنت خبره د هرچا زړه ته لار موندلی شي ، لومړی طبیعي آواز چه سړي ئې دخوند دښودلو او دشوق پیدا کولو دپاره دژبې او غاښو نو د سوړو په کومك راوباسی شپیلی دی ، د غه دخولې ، غاښونو اوژبې طبیعي آواز که په کومه ، له کښې ښکاره شي نو شپیلکۍ او شپیلۍ ترې جوړه شې . شپیلکۍ یو موړه آله ده چه په آ واز کښې دخولی شپیلی ته بیخي ورته او نږدې ده او شپیلۍ لبزه لوړه ، له ده چه دغه راز پرله پسي مکرر آوازونه راوباسی . واړه هلکان د غنمو له دانې ی شخه واړه واړه شپیلکی یا پونکی جوړ وی چه دیو تلو په واسطه ترې آوازونه وکاږی دغه شان له تلونو ، درمواودرو وشخه هم سورناك آ واز ایستلو دپاره دېرې ابتدائې آلی جوړیږی چه د غوټولو ته دشپیلۍ لومړنی شکلونه ویلا ی شو . چه په دې حساب شپیلۍ دساز و ه ډېره پخوانۍ آ له ګڼل کیدای شي . قیاس داوائې چه د کوم وخت نه چه انسان دخولی شپیلې وهل زده کړې وی نو دشپیلۍ وهلو چل به ئې هم زرورپسې زده کړی وی .

دو یدی سر ودو نو له مخه معلومیږ ی چه شپیلۍ ځلورزره کاله پخوا دبلخ او باختر په شاهی در بار کښې و هل کیدله .

دریګو ید یو شاعر وائې چه « د شپیلۍ اوتولې آ واز د( یا ما ) له بختپور تا تو بی او مسکن شخه اوریدلی کیږ ی .

هر کله چه دیاما تاتوبی په بلخ کښې د( وارا ) مشهور کوټ او مانۍ وه نو ځکه د غه سیمه دآ ر یه و د شپیلۍ لو مړ ی مر کز او منځې ګڼل کیږ ی . ( چارج فارمر ) لیکلی دی چه د چین له افسا نو شخه

داسې معلومېږي چه د وې څلورزره کاله پخوا دشپيلۍ دراوړلو دپاره (لنګ لن) نومي سړی، (باختر-بلخ) ته لېږلی ؤ.

له دې روايت نه څرګندېږي چه چين ته هم شپيلۍ له دې ځای نه تللې ده. دننګرهار د هډې په راوتلو ډبرينو تصويرونو کښې شپيلۍ هم دساز په آلاتو کښې دوهلو په حال ليدله کيږي. له هډې ځخه چه د کنيشکا دزمانې کومې مجسمې راوتې دي او عکسونه ئې د پښتون ږغ په مجله کښې چاپ شوي دي په هغو کښې (درباب، تمبل، ډول او شپيلۍ) عکسونه په ښکاره ډول دساز اوسرود په يوه مجلس کښې دغږ ولو په حال دهر چاسترګې ځانته راکاږي. له دې خبرو ځخه څرګندېږي چه شپيلۍ دافغانستان يو ډېر لرغونی ساز اودډېرې زمانې دآرکسترا دآلاتو يو مهم جزدی، سورنۍ، بين شپيلۍ دا دری واړه يو ک وهونکو آلاتو ځخه دي دا الې په اصل کښې له درمو او لرګو ځخه جوړېدې چه بيا وروسته له تانبې او نورو فلزونو ځخه هم جوړې شوي دي. دروی خاص د درموشپيلۍ ته ويل کيږي. شپيلۍ ته په هند کښې (بانسري) وايې چه ډېر لوی او واړه قسمونه لري.

ډاکتر غيب حسين د آ جکل دمجلې دموسيقي په ګڼه کښې ليکلي دي: چه شپيلۍ دنصيرالدين طوسي ايجاد دی مګر دا روايت صحيح نه برېښي، ولې چه دغه آله ډېره لرغونې او زړه معلومېږي. شپيلۍ دلفظي اوډون جوړښت له مخه دپارسۍ له (شيپور) سره نږدېوالی لري که څه هم شيپور د بيګل او تورم په معنی دی. زما په خيال په شپيلۍ شپيلي شپيلکۍ اوشيپور ټولو کښې د (ساړو) يعنې ساړو کلو معنی پرته ده او دساپيلو معنی هم پکښې ځان ښکاره کوي، په دغو ټولو آلاتو کښې ساښکته پورته کيږي

او لکه د ملغلر و پیلی کیږی . شپیلل په پښتو کښی یو ه بله معنی هم لری چه سړی په غاښو نو دسا کښلو په کو مك د جوار و له وزی یاهډو کی څخه دانی لیاغوښه راکاږی نودی ته‌هم‌شپیلل وائی .

ولی چه پدی کښې هم دسا،یو کلو یاساپیلواو راکښلومعنی‌پر ته‌ده په هر صورت مطلب دا دی‌چه شپیلۍ یاتوله د پښت بخداوبلخ دښایسته او ښکلی سیمی یو تاریخی ساز دی چه له دی ځای‌نه لویدیځ اوخنیځ او نوروځایو نوته تللی دی‌اوجلاجلا شکلونه او اوډولونه‌ئې‌موندلی‌دی. د پښتونخوا غرونه ، سیندونه ، درې اوډاګونه له ځلورو زرو کالو راهیسی دشپیلۍ له خوازه غږسره داسی اشنا دی چه هیڅکله له یو بل‌نه جلا کیدای‌نشی .

دشپیلۍ آ واز دشپونکی‌اوچوپان د ټول عمریوخوږ ملګری اودده درمو او ګله‌ووزود ژوندانه ساده ، څومره چه دشپیلۍ‌او شپون د کلموتر منځه لفظی نږدیوالی موجوددی‌نو هغومره په وهلو او غږولو کښې‌هم له‌یو بل سره‌تړلی دی .






دپښتودساز په آلو کښې یوه آله سرینده ده، سرینده هم لکه درباب او ډول پښتني ساز ګڼل کیږي دافغانستان آریانادایرة المعارف په دې برخه کښې داسې لیکي . رباب، سارنده، آرمونیه دافغانستان د ځمکې خاص آلات دي ځکه چه په پخوانو زمانو کښې په ګاونډو ملکو نو کښې ددغو آلاتو نوم او نښان هم نه ؤ . دغه دایرة المعارف دپښتو آرکسترا له رباب ، سریندې، سور نی او ډول څخه مرکبه بولي .

مونږ دمخه ویلي دي چه دساز د آلو یقیني تاریخ تاکل یو ګران او مشکل کار دی یوائې له ځینو قرینو او علامو څخه په دې برخه کښې څه نه څه معلومیدای شي او په غالب ګمان سره یو ه نتیجه ترې اخستل کیدای شي.

دسریندې په باب کښې چه زمونږ له نظره شو مره هندي او فارسي آثار تیر شوي دي په هغو کښې دسریندې نوم چرته نه دی راغلی په هندوستان کښې سریندې ته نږدې آله سارنګ بلل کیږي په پښتني سازونو کښې یوائې غژ که په شکل جوړښت او غږیدا کښې سریندې ته ورته ده او له یوه خیل څخه ګڼل کیږي غژکې ته په فارسي کښې غیچك وائي مګر دا نوم

دغبز له کلمی څخه جوړ شوی دی او یو پښتو ساز بلل کیږی دسارندی په باره کښې هم مونږ له لغوی څیړ نی څخه زیات کومك اخستلای شو

سارنده یاسرینده د سار یاسرد کلمو څخه د( نده ) دلاحقی په لګولو جوړه شوی ده . دفارسی ډول قاموسونه لکه برهان قاطع ، انند راج او نورلیکی چه له سار ، سارك سارما یوه خوش آوازه توره مرغۍ ده .. له قرینو څخه داسی معلومیږی چه دغه مرغۍ ښاروته وائي د( سار ، سارو ، شارو ، اوښارو ) دلمی هم لفظی نږدیوالی لری او هم معنوی . نو کیدای شی چه دسار ندی نوم دښارود آوازو نود مشابهت په وجه جوړ شوی دی لکه چه ښکاره او څرګنده ده دښا رو او سریندی د غږونو او چغار په منځ کښې پوره شباهت موجود دی او دسریندی نر ی نر ی چغهاری کټ مټ دښارود چغهار په شان دی په دي حساب د هندسارنګی هم ددغی مرغۍ له آواز سره ارتباط پیدا کولای شی . ددې توجیه د قوت لو یه وجه داده چه اکثر . سازونه بلکه په خپله مو سیقی دمارغانو له آوازو نو څخه را و تلی دی . دا احتمال هم شته چه دسریندی د کلمی اول جزء « سر » و ی د سر معنی تال او آهنګ دی یعنی سرلرونکی او سرغږونکی آله د دغو دوالړو معنا ګانو له مخه مونږ ویلا ی شو چه دغه نوم پښتو دی او دجوړوالو دول ئې هم د پښتو د کلمو په شان دی لکه پو ونده ، بهنده او نور .

دتیری څیړ نی له مخې مونږ سرینده د پښتو یو غوره ساز ګڼو او د سریندی په تارونو کښې د پښتنی تالونو او آهنګونو تماشه کوو ، په اوسنی وخت کښې دسر یندی مشهور غږوونکی استاد پذیر خان نومید چه د پیښور په راډیو کښې ئې ډیر عمر دسریندې په تارونو د خپل فن مهارت ښودلی دی د غه استاذ څه موده پخوا وفات شو

اودپښتونټه‌ګ تکوردنیا پری نیمګړی شوه . داستاد پذ یر خان له خولې نه‌دسرینسې‌په باب دغه‌روایت شوی دی :

«سرینده‌زمونږ دکورنۍ سازدی‌اوزمونږمشرانو لعرباب‌څخه‌دسریندی شکل راویستی دی» دی وائې پخوا په سرینده کښې د یارلس تاره وو. درې‌ژې‌اولس سیمی وو. مونږ په سارنده کښې‌اته تاره‌نورزیات کړل مګردا روایت راته هسی د یارانو ګپ ښکاری .

سرینده دپښتو یوزوړسازدی اواوسنی سازئې نشو ګڼلای . البته داکیدای‌شی چه داستادپذیرخان کورنۍ پکښې ښه نوم پیدا کړی‌وی ، دکابل په رادیو کښې ښه سرینده‌وهونکی‌غلام‌حسین نومیږی چه‌په‌اصل کښې دتیرا دی .






دپښتنوپه ټنګ ټکور کښې ځینې نورې آلې هم استعمالیږي چه اصلي ځای ملک او تاریخ معلوم مو لئې ګرانه ښکاري مګر هر دله چه او س په پښتني ټنګ ټکور کښې راځي او په پښتني سیمه کښې زیات شهرت لري نو ځکه غواړو چه په وروسته ډول ئې وښیو:-

ارمونیه د پښتو نخوا په خاوره کښې زیات شهرت او رواج لري او دساز او سرود مجلسو نه دارمونیې له غږ سره ډېر نژدې او کلکه آشنائي ښکاره کوي ارمونیه د پښتنو په اوسني ساز کښې د یوې داسې مهمې او مرکزي آلې حیثیت لري چه نورې ټولې آلې ورسره همنوائي کوي او دسر او تال سره ئې خپل غږ او تال برابروي داریانا دایرة المعارف په اول جلد کښې دارمونیې تاریخ په افغاني موسیقي کښې دوه زره کاله وړاندې رسول شوی دی دد غه دایرة المعارف له لیکني څخه داسې څرګندیږي چه ارمونیه دافغانستان په خاوره پورې اړه لري چه پخوائي په ګاونډي ملکونو کښې څه نوم او نښان نه وُ. ښاغلی محمد رضاعلي خان (۱) په هند کښې داجکل دمجلې دموسیقي په ګڼه کښې لیکلي دي: چه دهارمونی معنی دیورنګ غږ و نو یوځای کول دي په اروپا کښې هارمونیه دغږونو دترکیب معنی ورکوي. مونږ چه د موجوده وخت رواجي ارمونیې ته

---

(۱) اجکل اګست ۱۹۵۲ ع

ګورو نودغه تعریف‌ورسره اړخ لګوی اویوشان جوړی جوړی غبز ونه تری راو ځی‌دي کښې شك‌نشته‌چه‌دارمونیی دغه‌موجوده شکل به‌دومره پخوانی نه‌وی او خامخا به پکښې تغیرات اوبدلون راغلي وی خو بیاهم دنامه پەلحاظ له‌ډیري زړی‌زمانی‌سره خپل‌ارتباط ښکاره کوی‌او یوزوړ ساز ور ته ویلا ی‌شو ، دارمونیی په لغوی شیړنه کښې هم که ځیر شو نودغبزونو ویستونکی‌اوسرود ووونکی‌معنی‌ور کوی. په ویدی‌وتولنه او تهذیب کښې‌مذهبی سرودونه ویل دپلار وظیفه وه او په دي وجه ده ته(هاروی(۱) یعنی‌سرودوبونکی‌ویل کیده. په‌دغه کلمه کښې، هار،دسرود اوآواز په معنی‌ښکاری او(وی) یوه نسبتی اوفاعلی لاحقه ده لکه په ښاروی کښې چه دښار کوونکی معنی‌ور کوی (هار)په (هارن) کښی هم‌دغبز پەمعنی‌دی نودډي‌ریښې په اساس کیدی شی‌چه ارمو نیه په اصل کښې(هارمونیه‌اوهارمن)وي‌چه‌معنی‌ئې‌غبزیدونکی‌اوغبزویستونکی آله‌ده له ( هارمن) څخه‌د ګڼو آوازونوویستونکی آ لی هم‌مرادیدای شی‌ولی چه‌د(هار) کلمه‌دغبز ونو تسلسل اوډیربنت دپاره‌هم راځی‌لکه‌په څنهار دزهاراو نورو کښی.» هر دخندامسلسل آواز ته‌هم وائې نوپه دي‌اساس هم مونږ په ارمو نیه کښې دیښتو رنګه او ښه لیدلای ، او یوافغانی زوړ سازئی بللای‌شو ارمونیی‌تەزیات خلك‌باجه‌هم‌وائی‌باجه‌اصلاً دسرناك غبزویستونکی په‌معنی‌دەچەریښەئی‌دساعت په بجو کښې‌هم‌شته باجوباجونکه په‌پښتو کښې بلبل‌هزارداستان ته‌وائی‌چه‌زیروبم آوازونه‌لری. نوپه‌دي اساس مو نږ ویلا ی شوچه ارمونیه یادلاسواو ګوتو باجه‌د (باجو)له کلمی څخه اخستل‌شوی ده . باجي‌په‌پښتو کښې په څو ډوله‌دی:

۱ـد ګوتوباجه‌چه همدغې‌ار مونیی‌ته وائی .

۲ـدخولي‌باجه‌چه کوچني‌هلکان ئي‌په‌خولي‌پوك‌وی‌اوغنګهار تري‌وباسی.

۳ـ د ککوړو یاڅیکلوباجه‌چه‌څیکلی غبزوی دانوم‌د ګرامفون دپاره ایښو د ل شوی دی .

---

(۲) دافغانستان دتاریخ اول جلد ۱۶



# ستار

دا آله هم دافغانستان په خاوره کښې رواج لري په تیره د کونړ، چترال سوات او بد خشان په سیمو کښې یو ډیر خوږ او مشهور ساز دی ستار د تر نګیدو نکو سازو نو په خیل کښې حسابیږي. دستار په باره کښې هم خبرې ډیرې د ی ، څوك وائی چه ستار دامیر خسرود هلوی ایجاد دی چه په هند کښې د سلطا ن علاؤ الد ین خلجی په ز مانه کښې یولوی فنکار او د موسیقی پو هاند تیر شوی دی چا ستار دایرانی سازونو په کتار کښې راوستی دی، مسعودی په مروج الذهب کښې لیکلی دی چه د خراسان خلکو یو قسم سازواهه چه اوه تاره پکښې وو .

څوك ستار د هندی ویناوښتی شکل ګڼي مګر څه قدر پخه اوقوی نظر یه داده چه ستار اه لسمی پیړۍ (ع) نه پخوا په افغانستان ، ایران او نورو ځایونو کښې موجود ؤ او وله دغو ځایو څخه هندوستان ته تللی دی (۱) د پخوا نی مصر یو ساز هم ؤ چه بالکل دستار په شان ؤ.

په دی با ره کښې یوه نظریه داسی هم شته چه د ستار پخوانی شکل دچار تار ؤ یعنی څلور تارو نه ئې در لو دل مګر امیر خسرو د هلوی پکښې درې تارو نه زیات کړل او دستار نوم ئې پرې کېښود یعنی ( ساتهه تار) چه په هندی کښې داووتارو معنی ور کوی مګر هر کله چه ستار

(۱) آجکل اګست ۱۹۵٦ـ ٤٧

دافغانستان پەدرواوغرونو کښې اوس هم زیات شهرت لري اودهرچا دیوازې والي یوخوږ ملګري دی نو ځکه ئې مونږ افغاني ساز بولو چه غالباً له دې خاوري نه بل ځای ته تللی دی دستار نوم که څه هم ښکاره «سه تار» یعني دري تـار په معنی معلومېږی مګر یو بل احتمال هم لری چه له ( سیت ) او ( آ ر ) څخه جوړ شوی وی « سیت » د آواز په معنی د«سدا» د کلمی اصل دی اوسیتی په هندي کښې شپیلی ته هم وائی عجبیه داده چه له « سیت » سره د عربی «صوت »هم نږدې دی نو پدی توجیه ستار غږ لرونکی آله ګڼل کېږی .






ددې آلې په باره کښې هم ډېر روايتونه موجود دی چاتر کی ساز، چا ایرانی ساز او چا یونانی هم گڼلی دی(١) ، فرهنگ آنندراج لیکلی دی چه ( طنبور ) په (طا) (سره) د (توبزه) معرب دی چه اصل ئې هندی دی او د تریخ کدو په معنی دی ښا ئی چه دا نوم ځکه ورته ایښودل شوی وی چه د تنبور بیخ د کدو په شان دی . د اخود خلکو جلا جلا روایتونه وو مګر آریانا دایرة المعارف لیکلی دی : چه رباب ، سرینده سور نی او ډول د پښتنی ارکستر اساز ونه دی او تنبور په شان ساز چه د غسی شکل او خاصیت ولری هم بل ځای نه ؤ .

له دې اشاری نه څرګند یږی چه آریانا دایرة المعاف «تنبور» هم په افغانی ساز کښې شامل بولی مونږ هم تنبور د افغانستان د موسیقی د آلا تو

(١) د آریانا مجله د ١٣٣٣ د حمل گڼه .

یو ه آله ګڼو ، ولې چه دا آله اوس هم په افغانستان کښې ، او په تیره په شمالي برخو کښې ډېرشهرت لري او شمالي برخې یعنې دبلخ او باخترسیمې دهېواددلرغوني تاریخ زړه زانکو ګڼل کیږي . دسازډېري آلې لدغې سیمې یعنې له دغه مرکزنه شرق او غرب ته تللي دي هسانري جارج فارمر(۱) نومیالی ختیځ پوهاندلیکلي دي چه څلور زره کاله پخوا (لنګ لن) نومې چیني(توله) له باختر نه چین ته وړېده دغه شان ډما مه چه یو پښتني سازدی او نوم ئې هم پښتودی دجارج فارمر دلیکنې په اساس له افغانستان څخه چین ته وړل شوېدمنو غالب احتمال لري چه تنبور هم د بلخ او پامیر له سیمو نورو ځایو ته تللي وي، دتنبورلفظ په پښتو کښې تمبور دی که ددې نامه تجزیه وکړو . نو اول جزء ئې تمبا او دوهم جزء ئې (ور) دی او ترکیبي معنی ئې تمبیدونکی کیږي چه څپزونه او اهتزازونه پکښې انعکاس کوي .



---

(۱) دآریانا مجله د۱۳۲۳ ش دحمل ګڼه .




دا یوه ساده او زړه آله ده چه غاړه ئې له پاسته لرګي نه جوړېږي او په
منځ کښې ئې د وزې، لیا هوسۍ او لیاد لیوه پوټکی اچوي
شکل ئې د دایرې په شکل وي په پښتو کښې چمبه دایري او محیط
ته وائې، ډیر طبیعي او اصلي نوم ئې چمبه ده، په پارسي کښې ئې
دایره او په عربي کښې ورته (دف) وائې په پښتو کښې نور نومونه
هم لري. یو قسم ئې «تمبل» بولي چه د آواز د تمبید ومفهوم پکښې
پروت دی او بنا ئې چه د تمبې نه جوړ شوی وی ځینې کسان ئې داریا
داریال هم بولي (۱) دا ساز په پښتو کښې ډیر عام دی او د پښتنو ښځې په
ښادیو کښې یو ائحې د چمبې سره خپلې سندري وائې او بله آله ورسره
نه وی دا آله که څه هم په نورو ځایو نو کښې شته خود پښتو په
تنګ ټکور کښې پوره ځای لري او کوم پردی او نا آشنا ساز ورته
نشو یلای. د چمبې شکل په هغو مجسمو کښې چه و ننګرهار له
هډه ی ځنځه راوتلي دي در باب او ډول سره یو ځای لیدل کیږي
دغه مجسمې په دو همه عیسوي پیړۍ پورې اړه لري چمبه په پښتو کښې
دلاس جوړه کوتوته هم وائې او داریا هم همیشه د لاس په چمبه وهله کیږي.

---

(۱) د دار په سانسکرت کښې لرګي ته وائي چه اصل ئې د پښتو (لر) دی. په داریا کښې اصل
شی د لرګي چمبه ده. دارچیني په سانسکریت کښې د چیني لرګي معنی ور کوي




دا له هم زیاتره دافغانستان په خاوره پوری اړه لری په فارسی قاموسونو کښې د غیچك په نامه راغلی ده .مګر کلمه په اصل کښې پښتو ده اوغبز ــ غژ) له ریښې څخه د( که) دلاحقې په لګولو جوړه شوی ده غژ که دسریندې له خیل څخه یوساده ډوله سازدی چه دپښتنو په غرونو اوروهی سیمو کښې زیات رواج لری.

ځینې خلك دغژکی راویستونکی ابونصرفارابی بولی چه دافغانستان دځمکی یونومیالی پوهاندتیر شوی دی فرهنګ نظام لیکی څه غیچك یومشهور ساز دی چه غژک او کمانچه هم ورته وائی او دالفظ له ترکی نه راغلی دی » مګرداخبره سمه نه ښکاری ولی چه دفرهنګ نظام مؤلف ته پښتو نه وه معلومه نو ځکه ئې دغه پښتولفظ ترکی بللی دی . حال دادی چه دغه نوم بی له شکه ښکاره پښتو دی اود(غبز) له کلمی څخه جوړ شوی دی .



سورنی هم د پښتنو په تولو سیمو کښې د ساز یوه مشهوره آله ده چه په هره ښادۍ او واده کښې د ډول سره یو ځای په پیره مستیږي وهل کیږي د پښتنو په جنګي میدانو نو کښې هم د سورنی غږ خلك په جوش او مستیږ راولي دې آلې ته په هند کښې (شهنائي) وائي د آجکل د موسیقۍ په یوه کنه کښې محمد رضا علی خان (۱) لیکلی دي چه شهنائي او کرنا د شیخ بو علی سینا ایجاد دي ، په مطلع العلوم نومی کتاب کښې هم د غه خبره راغلې ده په پارسي کښې ئي (سرنا) بولي نو د دغه سند له کبله مونږ سورنی د افغانستان د خاوري مال بولو چه د باختر او بلخ له سیمې راوتلې دی .

په خپله د سورنی په کلمه کښې هم چه غور و کړو د پښتو رنګ پکښې زیات ښکاري د دغې کلمې اول جزء سور (سوری) او دوهم جزء ئي (نی) یعنې نل دی چه د سوری نل معنی ورکوي هر کله چه د سورنی سوری ډیر زیات دی نو ځکه په دغه نامه بلل شوې دې بله خبره دا ده چه سوري په پښتو کښې او ږدو چیغو ته وائي او د سورنی غږ هم د غه ډول دی .

د آریانا دایرة المعارف په اول جلد کښې سورنی او ډول وا ړه د پښتني ار کسترا ساز ونه ګڼل شوي دي .

---

(۱) اګست ۱۹۵٦ ، ٤ ګڼه .

ډول :- د پښتنو دساز او سرود یوه پخوانۍ آله ده د پښتنو د جنګونو
او اتڼو نو میدا نو نه هیڅکله د ډول له غبږه نشی خالی کیدای ، په
صوتی او لغوی لحاظ هم دغه کلمه پښتنو ښکاری او د (ډم) له غبږ سره ارتباط
لری ، د ډول آواز ته (ډم) وائي دې کلمې ته ډمامه ، ډومبکی هم راوتلی دی نو
کیدای شی چه له ډم نه ډن ، ډنګ او بیا وروسته (ډل او ډول) جوړ شوی وی ولی
چه (م ، ن ، ل) تل په یو بل باندې اوړی . ډول په پښتو کښې دژرندې دپاسه
ددانو اچولو سنسوخ ډوله لرګی ته هم وائی او دارټ په لرګو کښې لوی
تاوید ونکی څرخ ته هم ډول وائی چه دغه ټول په شکل او ګردوالی کښې
دمو سیقی د ډول په شان دی .

ډولکی :

ډولکی له ډول نه وړو کی دی او شکل ئې اوږد غو ندې وی . ډولکی
په پښتو ساز کښې د تبلې کار کوی او په ملی اتڼونو کښې زیات استعما لیږی
او په وړو وړو ډ نه و وهل کیږی .

بین

دا یوه بوک وهونکی آله ده له تاوراتاو نلونو څخه جوړیږي پاړو ګری ئې
د مارانو د نیولو د پاره وهی.

وائي چه ماران د بین په غږ مین دی او هر ځای چه د بین غږ واوری
نو سمدلاسه ورته راو ځی دو یدی زمانی په سرو دونو کښې یوه آله
د ( بهومی )( ۱ ) په نامه راغلی ده ښائي چه د دغه موجوده بین سره څه نیز دی
وا لی ولری بین او پین په ریښې کښې له پونکی سره هم نږدی دی چه کو چنیان
ئې د غنمو له ډانډو څخه جوړوی او شپیلی پکښې وهی په زړو آریائي سازو

( ۱ ) آجکل اګست ۱۹۵۶ع . د ( بهومی ) د کلمې د نږ دیوالی په وجه ښایی چه په بین
کښې د « بیم » لپاره سهو بللی شی .

نو نښې د ( وینا ) په نامه هم یو ساز شته چه د ( بین )سره لفظی نږدی والی لری .

**منګی**

منګی یا ګړی هم د پښتنو په ټنګ ټکور کښې داخل دی اوز یاتره له رباب سره وهل کیږ ی سرو ازی منګی هم وهل کیږ ی او کله ئې په خوله باندی څرمنه تړی او لکه چمبه ئې د ساز په وخت کښې په لاس باندی وهی

**کرنا**

دا هم د یو ک وهلو آله ده په پخوا نو زمانو کښې به له یوراز کوز ګړی شپکرنه دغه ا له جوړیدله نو ځکه شپائې چه اصل ئې شپکرنی وی یعنی دشپکر شپیلی او وروسته به « کر نا ، قرنا » شوی وی .

**بیګل - یا تورم**

تورم په مو جوده وخت کښې لښکریان او فوځیان زیات پکاروی او له زیړ و او مسو څخه یوه تاو راتاو جوړه شوی آله ده .

په انګریزی کښې ئې هم « بیګل » بولی چه په ځینو پښتنو کښې هم مشهور دې او شپائې چه د( بګ ، بغ )له کلمی نه اخسل شوی وی( بګوه = زړه ګیدړه چه د شپې ناری وهی ، او هم بګړ دبګ له غبزه جوړ شوی دی

**توری**

په پښتو کښې شپلیې رقم سازو نو ته وائې توله او توری هم په ریښه کښې یو دی نو کیدی شی چه په تورم کښې ( م ) دنسبت لپاره وی او تور ی ته منسوب وی .

**سندرغاړي اوسندرپوهاند:**

دساز دآ لو په شان دافغاني سندر غاړ وا وسندرپوهانو تاريخ هم تر ډېره حده پوري په توروتيارو کښې پروت د ی مګر په دې برخه کښې څه لږ ووږ معلومات لرو چه په ورروسته کرښو کښې ګرانولوستونکو ته وړاندې کيږي .

دبلخ د سامانيانو په وخت کښې موسيقي،شعر اوادب ز يات اهميت درلود، ددوی په دربار کښې دموسيقي پوهانو او سند ر غاړوته په درانه نظر کتل کيدل .وائي چه عبدالله دطاهر زوی«۸٤٤ م» دموسيقي پالونکی ؤاوپه خپله هم په موسيقي ښه پوهېده عبدالله ددغه عبدالله زوی دنغمو په ښودنه کښې يو کتاب.هم ليکلی ؤ(۱) دسامانيا نو د دوري مشهور سندر پوهان دادي :-

محمد بن احمدالخوارزمی ، داميرنوح ساماني همزمانه اودموسيقي لوی عالم ؤ(۲)ده په «مفاتيح العلوم» کښې دموسيقي په باب ښه څيړنه کړی ده .

محمدابن ز کريا رازی دمنصور ساماني په وخت کښې د موسيقي يو ستر پوهاند ؤ بلخي ابن سينا هم د موسيقي په باب پخې ليکنې کړې اود بلخ نوم ئې په دنيا کښې ښه څر ګند کړی دی . د ه په خپلودوو مشهورو کتابونو (الشفا ـ ا لنجا ت) کښې دمو سيقي په با ب ، جلا ، جلا با بو نه ليکلي دي. ابن سينا د(المد خل الی صناعة الموسيقی) په نامه هم يو کتاب لری ده په(دانش نامه) کښې هم يو فصل په موسيقي کو ښلی دی . ددې کتاب يوه نسخه دلندن په موز يم کښې شته دی(۳) په ځينو روايا تو

(۱)تمع ص ۱۹۸
(۲)تمع ص ۲۵۳
(۳)تمع ص ۲۵۹٠

کښې ابن سینادار سطو (السماع الطبیعي) دشرح لیکو نکی هم بلل شوی دی. دغه شان په موسیقی کښې دیوې جلا رسالې نسبت هم ورته کیږي.
ابن زیله (۱۰٤۸م) دابن سیناشاگرد هم په موسیقی کښې دخپل استاد پیروی کړې ده اود (خراسان) دموسیقي په باب ئې د (کتاب الکافي في الموسیقی) په نامه یو اثر لیکلی دی چه یوه نسخه ئې دبرتانیې په موزیم کښې شته دی.
وسـ ـا یانو په دوره کښې زود کې دپارسی مشهور شاعر هم سنسر بوهاند گهل کېده ابو نصر فارابي هم دافغانستان دغربي سیمواسپدونکی اودموسیقي یو ستر عالم گڼل کیږي په موسیقی کښې ده (الموسیقی الکبیر) ډیر زیات شهرت لري. ده په موسیقی کښې بوه بله رسا له لیکلی ده(۳)
ابو نصر دساز دیوی آلې راویستونکی هم بلـلې شوی دی.
ده دارسطو په (السماع الطبیعي) باندې یوه ښه شرح هم لیـکلې ده دی وائي چه ماتحلو بښت څله دارسطو دغه کتاب و کوت نوهله پرې پوه شوم
فخر الدین رازي (۱۲۰۹م) پخپل جامع العلوم نومې کتاب کښې یوه برخه دموسیقی دپاره خاصه کړې ده دغه کتاب په پارسي لیکل شوی دی اودوې نسخې ئې دبرتانیې په موزیم کښې شته دی(۱) عبدالقادر ابن غیبی ۱٤۳۵م چه دموسیقی یوستر پوهاندؤ په اصل کښې دهرات معلومیږي ولې په (۱٤۱۹ع) کال چه له هرات نه کوم ثقافتي هئیت چین ته لیږل شوی ؤ ده یې په هغه کښې یو مهم غړی ؤ. عبدالقادر د (جامع الالحان) په نامه یو کتاب لري چه یوه نسخه ئې په (بورلیان) کښې شته دی د (مقاصد الالحان) په نامه یو بل کتاب لیکو نکی هم بلل شوی دی(۲)

---

(۲) آریانا دایرة المعارف ج اول ، ص ۷۷۳.
(۳) تمع ص ۲۳٦
(٤) تمع ص ۲۳۰

جارج فارمر خپل په هاندوفخر الدین رازی او ابن غیبی کتابونه ډیر مهم بللي دي. عبدالرزاق سمرکندي په مطلع السعدین نومی کتاب کښي د موسیقي په باب ښه معلومات راغونډ کړي دي دا کتاب په پارسي لیکل شوی دی. په دي کتاب کښي د هغه هیئت بیان راغلی دی ؛ چه د هرات د تیمو ریانو په وخت کښي چین ته استول شوی وو او غیاث الدین نقاش هراتی او ابن غیبی ئې غړی وو (۱) د هغه وخت په هرات کښي شهاب الدین عبد الله بیانی او سید احمد غجک مشهور سندرغاړی وو . ښائي چه سید احمد په غږ که وهلو کښي استاد وو نو ځکه په غجک مشهور شوی دی . دي یو ښا یسته غلمی وجامی (رح) ولئي :-

وای آن غجکم کشت و شکل آن غجکی

که شور مجلس عشاق شد ز پرنکی

استاد حسین عودی او شیخ نائی هم دغه وخت سندرغاړی ګڼل کیږی (۲) دغوریانو او غزنویانو په دربارو کښي د شعر، ادب او موسیقي بازار به ګرم و. خو دسندرغاړو نومونه ئې را ته معلوم ندي.

اوسنی سندرغاړی

ښاغلی سرور ګویا په یوه مقاله کښي د کابل د موسیقي او سندرغاړو په باب هسي لیکي: په کابل کښي د ایرانی او هندی موسیقي ترمینځ رقابت موجود و مګر آخر هندي موسیقي میدان یوړ او دراګ مکتب بریالی شو . دی وائي چه دامیر عبد الرحمن په وخت په کابل کښي د پارسي سندرو استادان استاد ګلم الدین ، استاد قربانعلي او داود پښتو په سند غاړو کښي

(۲) د آریانا مجله د ۱۳۲۳ کال د حمل ګڼه

(۱) د پښتون ږغ مجله (۱۳۲۲ کال ۷، ۸ ګڼه

مشهور کسان داوو (محمدشفیع لغمانی ، آغامحمدلغمانی مزدور کاکاشینواری گلبدین لوګری، مرزا احمدلوګری محمدروزشینواری ، استاد ګل محمد سره رودی استاد بلندو، اوتازه ګل تیراوال اونور) .

ښاغلی سرور ګویالیکی: « چه د کابل په دربار کښی د ساز او سرود غږولو طریقه داوه چه (اوله برخه کښی به راګ یاراګنی ویل کیده، په دوهمه برخه کښي به پارسی غزلونه او په دریمه برخه کښي به د پښتو غزلونه او طرزونه ویل کیدل (۱) دایرانی او هندی موسیقی کوم اثرته چه ښاغلی ګویا اشاره کړی ده دغه اثر ډیر پخوانی نه دی بلکه دوروستیو زمانی سوغات دی او هغه هم د کابل په ښار پوری محدود پاتی شوی دی په نورو برخو کښی تردې چه د کابل دښار په شپیږ کروهی کښی هم زوړ او پخوانی پښتنی سازونه پر له پسی دول پخپل اصلی رنګ تردې وخته رارسیدلی دی چه نه ئې له لرغونی تاریخ سره خپله علاقه شلولی ده او نه ئې پردو او نورو سازونو ته خپل ځای پری ایښی دی .

زموږ عقیده داده چه د لوګراو پکتیا سازدلرغونی پښتنی سازښه نماینده ګی کولی شی ولی چه په دغه سازاو سرود کښی خالص اوزده، درانه او خوازه آهنګونه زیات لیدل کیږی اود پښتنی اتڼ له حرکاتو سره زیات سمون او جوړښت ښکاره کوی . نو په دی لحاظ د کابل د سمیی اصلی ساز او سرود هم دغه د لوګرياد شمالی څیني وطني سازونه بللی شو نردې شل کاله کیږی چه کابل راډیو په افغانستان کښي په خپرونو پیل کړی دی له دغه وخت نه وروسته په پښتو سازاو پښتنی سندرغاړو کښی دژوندساږو کلی

(۱) دتهران درادیو دمجلی په حواله.

شوی‌ده‌اوورځ‌په ورځ‌ئی‌دترقی‌او پرمخ‌تگ‌په‌لوری گامونه‌اخستی دی که څه‌هم‌په اساسی ډول ورته توجه نه ده‌شوی‌خوبیاهم درادیو غږ ډیر سندر غاړی ځانته‌راښکلی‌او په خپله غږیز کښی‌ئی څه ناڅه‌روزلی دی. مونږدلته‌په لنډ ډول‌دڅو سندرغاړو نومونه راوړواو له زیات بیان څخه تیریږو :

دلوگر په سندرغاړو کښی ( دری ) مشهور استادلودیوې زنگینی ولی خاوندی‌ده په شاگردانو کښی‌عبدالسلام‌لوگری‌او نور مشهوردی.

دننگرهاردسازاوسرود په‌ژوند کښی‌مرحوم ملنگ جان‌لوی‌لاس درلود ده‌څو کاله‌په کابل‌رادیو کښی‌دپښتودموسیقی‌دسرپرست په‌توگه کارو کړاو ډیرشاگردان ئی‌وروزل دی پخپله یوښه ملی‌شاعراو دملی آهنگونو په جوړولو کښی ماهروو‌ده‌مشهورشاگردان دادی :

محمد ایوب ښه سندر بول او دخو ازه غږ خاوندی. محمداسلم ، طلا محمد ، مرزا گل‌ښه سندرغاړی‌دی . محمد ین‌ښه‌باجه‌وهی. د کابل رادیو په‌سندرچیانو کښی‌استادمحمدعمر اومحمدا کرم ښه رباب چیان دی غلام‌حسن‌تیراوال‌دسریندی‌استاداوفقیرحسن‌ده زوی ښه وایلن غږوی .

استادنبی گل‌تیر وال دپښتوپه ساز کښی په فنی لحاظ ښه‌دی‌چه څه‌مو ده د کابل‌رادیو د پښتو موسیقی منتظم‌هم و . د پکتیا په سند رغاړو کښی شادگی ، عطامحمد ، میرسلام خوستی‌زرغون اونور ښه شهرت‌لری .

په کندهار کښی سلیم اونورمشهور دی په ننگرهار کښی محمدنوراستاد دزیات شهرت خاوندی.

د کابل راډیو په پارسي سندرغاړو کښې دغه دروسته کسان ډېر ه شهرت او نوم خاوندان دي استاد غلام حسین ، استامحمد حسین ددة زوی ، غلام دستګیر شیدا . استاد ننو خان ( دغه کسان د هندي راګ پیر وان دي ) په ورو کسانو کښې چه د کابل سازته ئې نوی رنګ ورکړاوله هندي قالب نه ئې راوویست ( خیال ، نسیم ، ځلاند ، ارمان ، پیلتون ) ډېره نوم او شهرت لري . دغه ټول کسان له پښتوسندروسره هم به اشنائي نوځکه به دې دله کښې هم حسابیدای شي "



**دلرې پښتون خوا سندر غاړی :**

په منظم ډول دپخوانیو زمانی دسندرغاړو معلومات په لاس نشته یوازی داوسنیو زمانی ځینی سندر غاړی په وروسته ډول ښودل کیږی .

دلری پښتو نخوا (اوسنی پښتونستان) په سندرغاړو کښې تر ټولو مشهور سړی استاد صحبت خان دی . دی دمردان دسیمی دمرغوز نومی کلی اوسیدونکی ؤ او په ټیکلو کښې د مردان په صحبت یادیږی . په رباب اوباجه غږولو کښې استاد اود ښه غږ خاوند ؤ . ده په هندی موسیقی کښې هم زیات مهارت درلود وائی چه دده ټیکلو دومره شهرت وموند چه نژدی دری لکه ټیکلی ئی خرڅ شول(۱) استاد صحبت خان په ۱۹۴۲ ع کال کښې وفات شوی دی . دولت خان دده شاګرد ، فرخ سیر دده زوی اوزرداد خان ، زیور خان داټول د پېښور درادیو نو میالی سندر غاړی او رباب چیان ګڼل کیږی . استاد پذیر خان په پېښور کښې دسریندی استاد ؤ . دده کورنۍ د موسیقی او ساز کورنۍ وه . دده وروڼه ګل میر خان او خوش میر خان دسریندی په غږولو کښې ډیر تکړه وو . پلار ئی عبدالقدیر خان په رباب اوسرینده غږولو کښې ښه لاس درلود .

دپېښور دموسیقی په استادانو کښې استاد بهرام خان اوبابا موسلی هم دیوره شهرت خاوندان دی . په پېښور کښې دموسیقی فن دوی پرمخ بوت . دهند تبله په پېښور کښې استاد بهرام خان رواج کړه استاد اکرم خان هم یو مشهور سندر غاړی دی . وائی (۲) چه د پښتو لوبو ر ګاټ دده په خوا ډک شوی دی او دلوستلی غزل سرئی دادی :

---

(۱) اتڼ ګی اس پارص ۳۲٤ د فارغ بخاری اثرسدلا هورچاپ .

(۲) اتڼ ګی ای پار ص ۳۲۸

(زه‌بلبل ستاد وصال یمه) په‌موجوده‌دوخت په پېښور کښې دغه‌وروسته کسان دشهرت او نامه‌خاوندان‌دی : استاد میراحمد خان‌چه دنویو لاروپه جوړولو کښې لوی‌لاس‌لری، مظفرخان، استادسبزعلی‌خان ، خانزاده ، عبدالله جان . زرخان ، انحر گل ، کچکول خان او نور په ښځینه سندر غاړو کښې حبیبه‌جان، بی‌نظرجان، چشتی‌چمن‌جان، فیروزه جانه . دلبرجان ، گوهربیگم وزیرجان،حسن پری ، صابرجان،بادشاه‌زرین جانه او نوری خوږی سندر غاړی گڼل کیږی . دغه ټول‌دپېښورله راډیوڅخه خپل‌غږونه‌هری خواته رسوی‌ددوی‌له غږونواوسندروڅخه ډېر ټیکلی هم ډک شوی دی‌چه دخو شحالی‌مجلس‌ونه پری هرځای ښایسته وی

دگرامفون ( دککوړوباجه)پیدا کیدو دلری پښتو نخوا د موسیقی په ژوند کښې ډېر زیات بدلون‌اواثر واچاوه اود دغی‌سیمی دموسیقی‌په نړی کښې ئی څه تاځه تازگی پیدا کړه مگر د هندی ټیکلو اثر او رنګ هم پری زیات پر یووت اود پښتو اصلی‌تالونه ئی گډه وډه کړل . په لارو کوڅو کښې کوچنیا نو دهندی ټیکلو زمزمې شرو ع کړی او دسهگل نغمو ډېر خلك لـه سده‌وویستل .

ولی بیا هم یونیم ا ستا دلکه سبز علیخان او نورو دپښتو مو سیقی تنا بونه ټینګ کړل اوخپل کلا سیکی سا ز ئې و ساته . دپېښور رادیو چا لا یند ل دپېښوردمو سیقی په او سنی ترقی کښې‌لویه برخه‌لری . دغه ریډیودپېرسندرغاړی ځانته را ښکل‌او په خپل‌غږ کښې ئې‌وپالل .

لا کن‌بیاهم‌دلری‌پښتونخوا موسیقی‌اوسرودډېر نیمگړی دی‌اوپوره‌پر مخ‌تګ ئې‌نه‌دی کړی . دغلته لاوس هم یوستوی نغمی‌اوسازونه غږول کیږی او دیو غور ه‌ار کستر ائی ساز شکل ئې‌نه‌دی موندلی .

# په نورو ملکونو کښې دپښتنې موسيقى اغيزه

د افغانى ثقافت او کلتور اغيز او اثر د شاو خوا ملکو نو په ثقافت کښې ځر ګند او ښکاره دى. جارج فارمر وائې: چه خراسانى افکار دعربو په علم ثقافت کښې ننو تى دى او دسامانيانو دورې دايرانى فن دپاره هم لار پا کـه او سمه کړه (١) لکه چه ښکاره ده افغانى پوهانو په عربو، هنداو نورو ځايو کښې د نورو د ثقافت او موسيقى دپاره ډېر زيات خدمتونه او ځلاند ې کارنامې کړې دى چه دادى مونږ ئې په لنډه ول ياد ونه کوو.

**سندرغاړى:**

دعباسى دورې زيات سندرغاړى او سندرپوهان په اصل کښې دافغانستان له لويديز وغاړو يعنى بلخ، ميمنې، هرات، غور، سيستان او بست څخه تللى دى لکه (حکيم الوا د ى، ابراهيم موصلى د ماهان ځوى) او اسحق موصلى دابراهيم ځوى.

وائى چه اسحق موصلى په (٧٦٧ ع) دخرسان په (رى) کښې زيږېدلى او بيا دخپل پلار سره بغداد ته تللى دى (٢) ددې دنيکه (ماهان) له نامه څخه معلوميږى چه دده تومنه افغانى او آريائى وه دغه نوم په ريښه کښې له (ماهويه سورى) سره نږدې دى. موهن په سانسکريت کښې دښکلې په معنى دى په ماهان کښې د (ماه، مېږ) ريښه هم ښته چه دسپوږمې او ښايست معنى ور کوى. په دې لحاظ دماهان معنى هم دغه کيداى شى. عربى تاريخونه وائى چه په عربى مو سيقى کښې له اسحق موصلى نه زيات عالم او پوه بل څوك ند ى تېرشوى. دغه شان محمد د حارث زوى او د بسخز نمسى هم په اصل کښې دهراتۀ عربى تاريخونو زيات آريائى نومونه غلط ليکلى دى نو ځکه پکښې سړى په اشتباه کښې

(١) تمع ص ١٧٢

(٢) تمع ص ١٤٦

لو یېزی لکه دغه بسخز چه معنی ئی نه معلومیږی زلزل د عربو مشهور سندر
پوهاندا و دعود غږ ولو ستر استاد هم په اصل کښې دخراسان ښکاری ولی چه
دی داسحق موصلی ماماؤ.

ابن خلکان او جحظة البرمکی دواړه دبلخ برمکی کورنۍ ته منسوب او د
د موسیقی په برخه کښې دپوهی او آثار و خاوندان وو. داخوان الصفا د موسیقی در
سالی په لیکونکو کښې ابو سلیمان محمد د معشر بستی زوی او ابو الحسن
دهارون زنجانی زوی هم اصلاً دافغانستان وو او په بصره کښې داخوان الصفا
دعلمی ډلې مهم غړی وو (۱) عبد المومن دصفی الدین خوی، دعز الدین نسفی،
دنعمت کړوسی او دقابوس (۲) کودی چه په بغداد کښې د عربی موسیقی ډېر
لوی عالم او پوهاندؤ په اصل کښې دجرجان یعنی اوسنی میمنی ؤ. دی لومړی
دمحمود غوری په زمانه (۱۱۷۳ھ) په افغانستان کښې او سېده او په موسیقی
کښې ئی د (بهجة الروح) نومی کتاب په خپل وطن کښې په پارسی لیکلی دی
(۳) په دغه کتاب کښې ئی دافلا طون هرمس، فخر الدین، تاووس
مروزی له آثارو استفاده او اخستنه کړې ده (٤) دی بیا ورو سته بغداد
ته ولاړ او هلته دالمستعصم په دربار کښې دسندرو او موسیقی رئیس (سندرمیر)
او دبغداد دیوې کتابخانې مدیر شو، وائي چه ده په کال کښې (۵۰۰۰)
دیناره معاش خوړ.

عبد المؤمن دیونان له اثر څخه خان خلاص کړی ؤ مګر دخراسان اثر
ورباندی پروت ؤ ولی چه دغه فن ئې له ځانه سره له غور نه وړی ؤ.

---

(۱) تمع ص ۲۵٤
(۲) دغه نوم هم په اصل کښې کاووس او یو آریائی نوم دی.
(۳) ددی کتاب یوه نسخه په بودلیان کښې شته دی.
(٤) تمع ص (۲۳٦)

پەموسیقی کښې ددەمشهور کتاب (الادوار) نومیږی چەپه (۱۲۵۲م) کښې لیکل شوی دی . دغه کتاب په موسیقی کښې یو ډیر باوری کتاب گڼل کیږی ، ددی کتاب څو نسخی دبرتانیې په موزیم اود اکسفورد په (بودلین) نومی کتابخانه کښې شته‌دی دی د(رسالة الشرقیه) په‌نامه هم یو اثر لری چه نسخی یې د(برلین، باریس، ویانا) په کتابخانو کښې پیدا کیږی. دعبدالمؤمن له کتا بو نو څخه دموسیقی ډیر روستر و پوهانو اخستنی کړی دی او په عربی موسیقی کښې دی یو لوی مأ خذ گڼل کیږ . په‌موسیقی کښې دده علم او مهارت ته قطب الدین شیر ازی ، محمد دمحمو دا لعا سولی زوی ، د کنزالتحف مؤلف، عبدالقادر دغیبی زوی محمد دعبدالحمید لاذقی زوی او نورو داحترام سرونه ټیټ کړی‌دی (۱) (سرهوبرت) وائې چه دصفی الدین نال مېچ ډیرژ وراودقیق ؤ ، ده دالغنی او نزهة په‌نامه دموسیقی‌دوه آ لی هم راو ستی دی عبدا لمؤ من په بغداد با ندی د هلا کو د طو فا ن نه وروسته (۱۲۵۸م) دهلا کو ر وزیر شمس الدین جوینی دزامنو بها الدین اوشرف الدین معلم او ښوونکی وتا کل شواو د شرف الدین په نامه‌ئې (رسالة الشرفیه) ولیسکله. ډیر وخت له بها الدین سره په (اسپهان) کښې ؤ مگر کله چه دجوینی کورنۍ له منځه و لاړه نوددە قدرمن هم ورك شول اوورځ ئې بدەشوه وائې چه دی ډیر آ زاد لاس اوسخی سړی ؤ ، په‌خپلو دوستانو به‌ئې ډیری پیسی ښندلی او سوغاتو نه به‌ئې ورله اخستل (داخوی ئې د ښننوؤ) تردی چه آ خر پوروړی شو اود (۳۰۰) دینارو په پور کښې بند یخانی‌ته و لاړ او هم هلته‌ئې له‌ونیانه‌ستر گی پټی کړی (۲) دهندپه‌موسیقی کښې هم افغانی سندر پوهان

(۱) تمع ص ۲٤۰
(۲) تمع ص (٥٦٢٨)

لو ی لا س لر ی . په هند کښې داسې ډېر پښتانه تېر شوي دي چه یادموسیقی عالمان او یاپخپله سندرغاړي وو .شیرخان لودهی داورنگ زیب په زمانه کښې دموسیقی یو مشهور پوهاند ؤ په ایرانی او هندي موسیقی کښې ئې پوره مهارت درلود او په دغه برخه کښې ئې یو کتاب لیکلی ؤ په (مرأة الخیال) نومی کتاب کښې ئې یوه برخه دموسیقی په باب لیکلی ده. دامیر خسرو دهلوی پلار چه دهند په موسیقی کښې دیـو مـجتهداو ستر استادحیثیت لري هم په اصل کښې دافغانستان له شمالي خواؤ څخه هند ته تللی ؤ . دهند پوهان دهند دموسیقی دراگونو په و ده کښې ډېره رول په ښه شان مني او دموسیقی په علم کښې دی یوز بردست پوهاند بولي دوی وائی :

چه امیرخسر و په هند کښې دا سې نو ی نو ی را گو نه راوویستل

چه هندي موسیقی ورسره اشناهم نه وه ،

په هند کښې د موسیقی دډېرو پوهانو له نومو سره دخان ، خانصاحب کلمې راوړل کیږي نوله دغو څخه هم لېزو ډېر ددوی افغانیت څرگندیږی .لکه نعمت خان ، فیروز خان، قطب بخش خان تان سن هم د خانصاحب په لقب یادیږي . ددهزوی امراو خان هم په موسیقی کښې ښه لاس درلود په استاد فیاض خان او استادوزیرخان کښې هم دپښتني رگ څرگ لگیږي . دجیپور په ریاست کښې بهرام خان دموسیقی لوی عالم ؤ . درامپور په نوابانو کښې هم ډېر کسان دموسیقی پوهان تېر شوي دي . دوی په اصل کښې پښتانه دي . صادق علیخان او سر سعادت علي خان پکښې ددې فن ماهران وو . دغسی نور هم ځای په ځای ډېری پښتني ځېلی او ربښی پیدا کیږي په ښکاره ډول استاد حافظ علي خان دسرود استاذ اصلاً بنگښ پښتون دی .دده نیکه غلام بند گی خان دبنگښو نه هند ته تللی او پښتني رباب ئې له ځان سره وړي ؤ .دده زوی غلام علي خان

او بیا دهغه زامنواو نمسو په موسیقی کښې کوډي ـ ودرولی او خپل شهرت ئې دهند ګوټ ګوټ ته ورساوه. په موجوده وخت کښې استاد حافظ علی خان بنګښ دغلام علی خان نمسی دسرود په غږولو کښې د پرزیات شهرت لري . دغسی نور هم و بـولیء ؟؛



**دساز آلی :**

جارج فارمرد گلاسکو د پوهنتون استاد لیکی: چه د موسیقی ډیری آلی له افغانستان څخه د چین خاوری ته تللی دی لکه تنبور ، سه تار، رباب ، غږ که، سورنی، نغاره، قانون ، دغه ټول نوموړی په لږ تغیر په چین کښی موجود دی. غیاث الدین هراتی دیو افغانی هیئت غړی چه په ۱٤۱۹ کال له هرات نه چین ته تللی ؤ ، د چین دسازو نو په باب و ائی: په پیکن کښی د شاهی ماڼی، شا و خوا دوه زره سرود گرودخپلو آلو سره ساز کاوه.

کورکه، ډول، ډمامه چنګ، ګړیال به په آزاد میدان کښی غږ ول کیدل. ده (یاتوغان بینه کمانچه ؛ نی تنبورک، ډولکی ، موسیقار) هم د چین په سازونو کښی راوړی دی ابن غیبی د دغه هیئت بل غړی دختا او چین په آلو کښی د (یاتو غان، پی پا، شید یرغورا) چوپچیق) یاد کړی دی(۲) یاتوغان له چنګ سره نژدې والی لری پی پا څلور تاره در لودل چه له بربت او عود سره اړخ لګوی څلورم ته ابن غیبی موسیقار وائي دغه آله له څو نلونو څخه جوړه شوی وه. د جارج فارمر په قول ټول له هم له باختر نه چین ته تللی ده او څلورزره کاله پخواد (لنګ لن) نومی چینی په واسطه چین ته وړل شوېده. د چین په سازونو کښی (ډمامه) په یقین پښتنی ساز او د پښتو (ډمامه) ده چه اوس هم شته. ډمامه د (ډم) له صوت څخه جوړه شوېده

---

(۱) بر غوبه پښتو کښی داسرافیل شپیلی ته وائي.

(۲) د آریانا مجله (۱۳۲۳ کال د حمل ګڼه

او بوه دربید ونکی آله ده . چینی چنگ هم غالباً له افغانستان نه تللی دی او عربو هم له دې ځای نه اخستلی دی. عربو دغه ساز نه درلود نو ځکه ئې په معرب نامه (صنج) بللی دی. دچنگ د رسم نمونه دوه زره کاله پخواله بامیانو څخه راو تلی ده چه ددوو سرود گروښځو په غیبږ کښې دنغږ و لو په حال لیدل کیږي. چنگ په پارسی کښې کوږ او کونتې ته وائې و په پښتو کښې دچنگ چینگ) بونری طبیعی دغم یاڅرادوخت صوت دی و ائې « ډیر چنگ چنگ مه کوه » یا « ډیرمه چینگیږه» داسې هم وائې له فلانی څخه ئې چینگارووېست. بل دلاس جوړه گوتو ته چونګ ، چونګی و ائې لکه: یوچونګ اوړه یو چونګ راتی» اوچنگ هم په جوړه گوتو وهل کیږي په دې حساب په چنگ کښې په ظاهری لحاظ دپارسي ریښه او په معنوی لحاظ دپښتو ریښه ځان ښکاره کوي. او په دواړو لحاظو نو چنگ ددې خاورې مال گڼل کیږي.

رباب دافغانی ساز لرغونې آله ده چه دهند ، ایران او عربو ته تللې ده ، له پښتنې رباب نه په هند کښې سرود ، په ایران کښې بربت او په عربو کښې عود جوړ شوی دی. ابن سینا وائې چه بربت او عود په یوولسم قرن کښې یو شي ؤ او بربت څلور تارونه درلودل بربت یو پارسي نوم دی.

بر په فارسی کښې غیږې ته وائی او بته داوچتې غړانگی کوانتی سرې مرغاوې نوم دی. کوم وخت چه پښتنی رباب دبتې په شان غیږه او کوټې سرلری پارسي ته ورسید نو هلته بربت و باله شو او دخپل شکل په لحاظ په دغه نامه مو سوم شو. دغه کلمه بیادایران په لار یونان ته هم ولاړه او هلته (بربلتیس) شوه

جارفارمر لیکي چه دغه آله چینیا نو هم له باختر نه وړې وه، چه دوی ئې (پي پا) بولي. داخبره په ښتن کښې د (سراورل ستین)

له‌ځینو نوښخه ځر ګنده شوی‌ده چارج‌فارمر رباب دخراسان یو خوږساز
بولی (۱)

له دې نه ځر ګنده شوه چه دعربی عوداصلی اېره اوریښه لرغونی
پښتنی رباب دی چه په‌پخوانی‌افغانستان کښې‌ډېرمشهور ؤ.اود ګندهارا
دولایت په دوه زره کلنو لرغونو اثارو کښې ئې‌ځیره او شکل‌موندل
شوی دی.

په عربی اصطلاح کښې کوز عود ته رباب وائی مګر کوز عود
هم‌دحکیم بن‌احوص سعدی (۲) راو پستون بلل شوی دی کوز عود په
پارسی کښې د شاهرود په نامه راغلی دی چه په غرب کښې ئې زیتار
بولی . تنبور هم یوه داسې آ له ده چه دلرغونی افغانستان له‌غربی بر
خویعنی خراسان ښخه نورو ځایو ته‌تللی ده ابن‌خرداد به وائی. چه
تنبور په‌پارسی، ری‌اوتبرستان کښې رواج درلود ابو نصر فارابی دوه
ډوله تنبور ښودلی دی یوډول‌خراسانی تنبوراوبل‌ډول میزانی یابغدادی
تنبوردی‌دی‌وائی چه خراسانی تنبور دخراسان په شرقی اوشمالي ځمکو
کښې هم رواج درلود (۳) ابن عبدربه په العقدالفرید کښې د دوه‌تاریز
عود یادونه هم کوی چه دوترو نونوم ئی زیراوبم ؤ . له دې‌نه معلومه
شوه چه دعربی تنبور اصلی ریښه هم په خراسان کښې ده چه د لته
ددوتار په‌نامه هم‌بلل شوی‌دی‌اودوترونو نومونه ئی هم عربی نه دی
بلکه دواړه پښتنی او آریائی ګڼل کیږی.

---

(۱) دآریانا مجله (۱۳۲۳ کال دحمل ګڼه
(۲) تمع ص۲۸۱سعدی‌زمونږ‌په خیال په‌اصل‌کښې ساګزی دی‌چه یوه آریائی‌قبیله‌ده
(۳) تمع ص ۱:۸۳

# دپښتنی ساز اصطلاحات :

شان : دخوښۍ او خوشالۍ یوه نغمه ده چه دډول ، سورنی ، شپیلۍ اور باب په واسطه غږول کیږی ( ۱ ) دې ته دخوښۍ نغمه هم وائي شان دلږ ساعت دپاره په یو ستوی رنګ هم غږول کیږی .

نوبت : دشاهی د بدبی اولویۍ څرګندېدو نغمه ده چه د پاچایانو یا امیرانو په دربارونو کښې سهر مهال یا پنځه وخته د یو څو ګړو آلو په ذریعه غږول کیږی .

څاښنی : دخوښۍ یوه بله نغمه ده . چه دساز او سرود په مجلس کښې د مجلس دتودولو دپاره غږول کیږی . څاښنی د پښتو موسیقۍ یو زوړ دود دی دڅاښنی دغږولو آلې ډول ، سورنی ،شپیلۍ ،بین ،رباب او سرینده دی .څاښنی پردوه ډوله ده یو قسم ته ئې تیر ائي او بل قسم ته پیښوری وائي (۲) په څاښنی کښې څه قدر جوش او تیزوالی هم وی دڅاښنی کلمه غالباً دڅښل او څکل له مصدر وڅخه راوتلې ده ولې چه څاښنی داصلی ساز او سرود ترمخه یو مځکه اولومړنی ګوت دی څښنی کسان ور ته چاشنی هم وائي مګر په معنی کښې څه فرق نه لری .

لاره : دنغمو او ساز دغږولو خاص طرز او ډول ته ویل کیږی مثلاً وائي دا لاره ښه ده دا ښه نه ده . یوه ښه لاره وغږوه ،

شان نوبت او څاښنی دریواړه په یوستوی ساز کښې نه غږول کیږی بلکه دکورس په شکل راځی یعنی خامخا غبرګ او جوړه ساز غواړی

---

( ۱ ) اټك کی اس پار ص ۳۱٤
(۱) اټك کی اس پار ص ۳۱۵

مکرلاره په یو ستوی او غبر ګ دواړو کښې راځی .

سور : د آهنګ او وزن معنی ور کوی .

تال : د آهنګو نو د تول ، سمون او برابری په معنی دی .

پرده: پښتانه سندر غاړی د ساز د هسکوالی او ټیټوالی درجی او مقام ته پرده وائی مثلاً وا غزل په او چته پرده کښې وو ایه او دا په ټیټه پرده کښې وو ایه ادا نوم دباجې یعنی ار مونیی له پردو څخه پیداشوی دی .

نغمه : نغمه قسر عام نوم دی . د هر قسم آ لو په واسطه په یو ستوی او غبر ګ سازدواړو کښې غږ ول کیږی . په یو نغمه کښې دوه ، دوه لاړی را تلای شی مثلاً په تیر ائی نغمه کښې د هری لاری یعنی څو طرزو نه او دو لو نه شته دی . د غه شان د غر و نغمه ، د سیند و نغمه هم څو څور نګو نه او لاری لری . کله کله نغمه او لاره په یو ه معنی هم راځی .

خیر او بم : خیر ټیټی پردی یا هوار پوست او نرم تال ته وائی او بم او چتی پردی یا او چت جګ او لوړ تال دی په هر ساز کښې د غه دواړه تالونه موجود دی او د تالو نو له خیر او بم څخه یو ساز او سرود جوړیږی .



## د سندرو وختونه

کاریگر پښتانه خپل ټول وخت دساز او سرود په اوریدلو نه تیروی بلکه د سازاو تنګ تکور داوریدلو د پاره خاص ، خاص وختونه لری په عمومی ډول په پښتنو کښی د سند رغاړو ډلی په واده ، کوبدن او نورو ښاد یو کښی دخپل فن اوهنر کمال ښکاره کوی .

دیوه کډاو شر یک کار په مهال کښی هم دتنګ تکورله نغمو څخه قوت او تازګی اخلی لکه د غوبل ، و یالو کینولواو یا کوم بل شریک کار په وخت کښی .

دجنګ او جګړو په وخت کښی دسازاو موسیقی ډلې په ډیرجوش په خپلو مستو نغمو دلښکر زړونه مستوی او په دښمن ئی پتی ستر ګی ورخیژوی

یو ستوی ساز یاخانله ساز وخت نه لری شپونکی په غره کښی هر وخت دشپیلۍ له غږ ولو خوند و نه اخلی زلمیان په ډیرو اوهوجرو کښی تل یوستوی ر باب یاستارغږوی .

ښځی په کورنو کښی یوازې د تمبل په وهلو خپل ساعت تیروی مګر هغه هم په ښادیو کښی . په پښتنومیرمنو کښی بی له ښاد یود سندرو ویلو رواج ډیرلږ دی ! . کله کله پیغلو ئی جینکی دساعت تیری دپاره هم تمبلونه او داریالونه وهی .

هو ! په غرنو سیمو کښی چه پښتنی نجونې دلر ګیو د پاره غرونو ته ځی نو هلته هم ورځ په سند ر و تیرو ی ټپه یا لنډۍ د هر پښتون او پښتنی د کار روز ګار ، د غم ښاد ی او سا عت تیری یو وړ دا یمی ملګری دی .

د کار په وخت کښې ټپې ویل ښائي چه‌د پښتون قوم یوازینی‌خاصیت وي . دلو ، لور ، کر غو بل او نورو کارونو په وخت کښې په جګ آواز لنډۍ وائي .

د اوږدې لیاري سفرهم‌دلنډیو په ویلولنډوي اوښکې دمیچنې کولو په وخت کښې د سهاراو پیشلمې ستاینې کوي . په د ې لحاظ موږ ټپو ته دژوند سندرې یاد کاریګر وسندرې ویلای شو . یو پښتون چه کله دخوزې پښتو نخوا د جګو غرو په سرونو کښې یوه لنډ ۍ په خپل خوازه غږو وائي یا کله چه په دیرو او هوجرو کښې دبدلو ، غزلو ، بګټیو ، لوبواولنډیو نیمګیوخوا زه آ هنګو نه و غږوونو بیا تر ډیره وخته مست ګرځې . او په هیڅ شي چرت هم نه خرابوي . دپښتو ساز په هر وخت کښې دپښتنو د ژ و ند سا ا و غمجنو ا و خو ږ منو زړونو دواده .



# موسیقی او نڅا



له ډیر وخته وا تو زمانو څخه دساز او سرود او نڅا تر منځ یو تړون او
ټینګه او تړاو موجود دی . نڅا هم د موسیقی په شان یو لطیف فن او
د حرکاتو په واسطه وجد یا توا او احساساتو څرګندوونکی دی د نڅا
خوځښتونه د موسیقی د خوږو تالونو په واسطه اداره کیږي او موسیقي
د نڅا د پاره د ساز او روح مثال لري د بېړۍ په (اوبو) اخو نو کیږي که چیري
د آر کسترا د آهنګو نواو نغمو لاره نه بووده نه وي نو یوه ناچ کړه به هم
خپل هنر په ښه شان ونه شي ښودلی .
بیتا نه ولیږي په مستانې هله کیږي چه د پوول لیونی غیږ وا وري

له دې نهمعلومه شوه چه نڅا، ګډا او اتڼ د هر ډول غږ او موسیقۍ د نغمو او آهنګونو تابع دي. د دې تینګ ترون له کبله غواړو چه دلته په لنډه توګه د اتڼ او نڅا ځینې ډولونه وښیو.

اتڼ

د پښتنو یو خاص جنګي ورزښت دی. چه لاس، سر، پښې او ټول غړي په کښې په سم ډول غورځي. پلي، زګونه او نور غړي پکښې په خوځېدو راځي او په دې صورت د درستو دقوي کېدو شوق پیدا کیږي. اتڼ په لغوي لحاظ له (اته) او نسبتي (ن) څخه جوړ شوی دی. (اته) لاس او څنګل ته وائي ځکه چه په اتڼ کښې لاس او څنګل زیات فعالیت ښکاره کوي له دې کبله (اتڼ) بللی شوی دی. اتڼ ډېر زیات قسمونه لري. په لو مړي سر کښې د ناریینه ؤ په اتڼ او د ښځو په اتڼ ویشل کیږي په کډه اتڼ کښې ښځې او نر یوشان برخه اخلي داراز اتڼ د کاکړو په خوا کښې اوس هم شته دی. اتڼ یو ستوی حرکت نه دی بلکه یو غبرګ او جوړه خوځېدونه دي او خاصخا ګنې کسان غواړي په دوه تنه هم کېدای شي چه دلته دارو بائې ډانس شکل پیدا کوي اتڼ ځینې خاصې ناري هم لري چه د اتڼ چپا نو له خوا په خاص غږ او آهنګ ویل کیږي.

نڅا او ګډا: نڅا او ګډا یو ستوی او غبرګ یعنی هم ځانله او هم په ګډه کېدای شي په نڅا او ګډا کښې هم ډېر قسمونه شته دي. د خټکو ګډا زیاته مشهوره ده د نڅا او ګډا ترمنځ هم څه نږې توپیر شته. په ډېر فني او آرټستي ډول لاس پښې خوځول چه په هر حرکت کښې ئې

ډېره نرمي او لطافت اغېزل شوی وي ښځابولي . اوچه څه قدر درنه والي اوزيږ والي پکښې وي نوهغه ګڼداده.

ښځا زيانه دلطيف جنس يعني ښځمنو لهخوا کيږي او ګڼدادنا رېنه ته لاردي دختکوبه ګڼدا ښنې دري ډولونه مشهوردي بنګړه ، شاړوله، بلبله . په بنګړه کښې دلاسونو بنګړي او ګينګړي شر نکيږي يعني لاسونه پکښې ډېر غورزي . په شاړوله کښې دشااوډوډو و دځر خبدو فعاليت زيات وي اونريمه ملاپکښې ډېره تاويږي . مګرپه بلبله کښې پړک پړوک او جلبل زيات وي . دنڅا اواتڼ دغه درست قسمونه دموسيقۍ اوساز د تالونو تابع دي اوتل دموسيقي دنغمو په ملګرتيا ميدان تهراځي .



## د پښتو موسیقي او پښتو شاعري تړون

دا خبره چه موسیقي او شعر د یوه حقیقت دوه بېل بېل نومونه دي په پښتو موسیقي او شاعري کښې پوره اړخ لګوي په پښتو کښې د موسیقي د آهنګونو او تالونو ډېروالی او بېلوالی د پښتو شعرونو په ډېربښت او بېلتون پوری تړلی دي په پښتو کښې د شعرونو قسمونه او رازونه ډېر دي نو په دغه وجه د موسیقي تالونه او آهنګونه هم زیات دي په پښتو کښې د هر قسم شعر چو کاټ بېل او معلوم دي لدې کبله د هر قسم شعر د ویلو تال او وزن هم ثابت او څرګند دي او د پښتونخوا هر شاعر او بانډی پوهېږي مثلاً د پښتو په ملي اشعارو کښې چاربیته (بدله) ملي غزل لوبه، بګتۍ، نیمکۍ، داستان، لنډۍ، هر یو ځانله جلا قسم دي چه د ویلو چو کاټ ئې هم بېل دي او په هر ځای کښې په خپل خاص آهنګ سرمویل کیږي د بدلي په وزن او تال کښې څه قدر رواني او لکه د سیند د اوبو کلاري او هواري لیدله کیږي مګر په غزل کښې یوه اندازه تیری او د آهنګ تیټ او پاسي راځي لوبه او بګتۍ ترغزل هم زیات تیزوالی لري آهنګ ئې تیز او تونددی مګر لنډۍ کیږي، هسکیږي او ټیټیږي نیمکۍ په وزن او آهنګ کښې لږ پې ته پروت ده ولی چه د نیمکۍ سرونه په ډېر سوز ناک رېږدونکي آهنګ ویل کیږي مثلاً:

لودی، لودی د غنمو

کیدی را واچوه بنګړی را غلی د ینه — لودی، لودی د غنمو

لنډۍ په پښتو کښې معلوم او ټاکلي وزنونه او تالونه لري. لاکن تو پیر دادی چه په شور ازمدی او بیلی بیلی سیمی په نوموی پوهیږي لکه شلګری ته تیراوالی، پېښوري او نوري:

لندې عموما پهراښکلي او کښال غبزويل کيږي او په پاى کښې ئې
چه نور آهنګونه هم زياتيږي ديواني غزلونه په ساز اوسرود کښې يو
ځانله مقام لري. پښتانه سندرغاړي دساز لومړى شروع په ديواني غزل کوي
چه دوي ورته پهخپله ژبه رباعي او مقام وائي لکه درحمان بابا غزلونه چه
زيات دغه ډولدي دپښتو پهساز اوسرود کښې قاعده داده چه لومړى يو مقام
وائي بيا وروسته وربانديغزل يابدلهسوروي. پهمنځ کښې يو هنيمهلنډۍ
وراچوي او په دې صورت پهيومجلس کښې دشعرد بيلو بيلو ډولونو په
ويلو سره د موسيقي په آهنګ، تال اوسُر کښې هم پوره بدلون او
بيلتون راځي.

له دې نهثابتهشوه چه پښتو موسيقي ځانله يو ټاکلي چوکاټ لري چه له
پيړيو پيړيو راسي پهدغه چوکاټ کښې اچول شوي او خپل شکل ئې جوت
کړي دي لکهچهدپښتو دبيلو بيلو شعرونو چوکاټ او قالب معلوم او ثابت دي
دغسي دپښتو موسيقي د آهنګونو او سرونو چوکاټ هم ثابت او جوت دي.
او په دې حساب پښتو موسيقي او پښتو شاعري يو تر بله سره غاړهغړي
ورغلي دي نوځکه پښتو موسيقي د اساس په توګه کوم نوي چوکاټ ته اړه نه
لري يوازې سمون ښه والي ، درونوالي او د آلو ډېروالي غواړي.



# د پښتو موسیقی دپر مخ تګ لارې

پښتو موسیقي په موجوده وخت کښې سره له څه ناڅه کوشش په ابتدائي حال پاتې دی تر اوسه پورې هغه آ هنګونه چه له لرغونو زمانو څخه دپښتو نخوا په غرونو او ځنګلونو کښې انګازې کوی؛ ټول نه دی را غونډ شوی او هاغسې دطبیعت او فطرت په غیبز کښې نغښتی پراته دی.

دخو شحال خان خبره:

چائې پلو له مخه وانه خست پښتو لا هسی بکره پرته ده

دې کښې شك نشته چه دسپین غره، کښې غره په لمنو کښې دپخوانو آریا یانو دموسیقی خوږی نغمی تراو سه خوندی پرتې دی. دیو پښتون شپونکی دخوږې شپیلۍ او دیو مین آ دم خان د سو ځند رباب خوند او خوږ والی خدایږ و که هیچیر ی هم پیدا شی.

مونږ دېر خوند ور او له جوش او مستۍ نه ډ ک آ هنګونه لرو، لاکن له بده مرغه چه ز مونږ د نوروویاړونو په شان یا د خاورولاندې شوی دی او یا د غرو نو او کږ نګو نو په منځ کښې پراته دی لبزې شپې کیږی چه کابل راډیو د پکتیا د ځینو آ هنګو نو او سند رو په راټو لولو بریالی شوی دی تماسی ر ښتیا و وائې او په ایمان ئې و وائې چه دمیرسلام خوستی او عطا محمد او دپکتیادنورو سند ر غاړوسندری غبزو نه او دشیرین ګل غږ که خوند نه در کوي!

په مستیږمونه‌راوالی؟ په رګو نو کښې موږوینې جوش نه‌زیاتوی؟
زه یقین اومعلو ماتد واړه لرم چه‌ځواب ئې هودی ! نوپس له دې
باور او پوهې څه کول پکار دی ؛ ز ما په خیال د پښتو موسیقی
د پرمخ تګ د پاره دغه وروسته خبرې عملی کول پکار دی :








## دپښتون ږغ دمدیریت له خوا چاپ شوی کتابونه

۱ چند آهنگ ملی.

۲ نی نامه

۳ از بلخ تا قونیه

٤ خوشحال او پسرلی

۵ ملنگ جان

٦ استاد قاسم

۷ افسانه های مردم

۸ گیتان جلی

۹ باغبان

۱۰ دپښتو لندی چه دپارسی او انگلیسی ترجمه دم لری

۱۱ هدف

۱۲ آوارگان

۱۳ هنرمندان افغانی

۱٤ پیغام

۱۵ دژوند سندره